# شهامت

اتم کال ، دویمه ګڼه پرلپسې ۴۶مه ، رمضان المبارک ، ۱۴۳۵ه ، جون ۲۰۱۴م

دغزې زړه بوږنوونکې غمیزه !او د اسلامې هیوادو مجرمانه چوپتیا




## امریکائي بادار دواړه لاسپوڅي سره غاړه ایستل

## پیام تبریکی عالیقدر امیرالمومنین به مناسبت فرا رسیدن عید سعید فطر

## مونږ دغزې له مقاومت نه څه زده کولای شو ؟

## غلامان څنګه خپل بادار تس نس کړل



## دغزنی ولایت له جهادی مسؤل سره مرکه

## دشهید شیخ الحدیث مولوی عبدالحکیم ژوند او کارنامو ته کتنه

تاسیس حکومت الهی

## د داعش تیز پر مختګ او دعراق راتلونکی

اتم کال ، دویمه ګڼه پرلپسې ۴۶مه ، رمضان المبارک ، ۱۴۳۵ه ، جون ۲۰۱۴م

# شهامت

علمي، کلتوري او اسلامي مجله

اتم کال دوهمه ګڼه، پرلپسې۴۶ مه، رمضان المبارک ۱۴۳۵هق، جون ۲۰۱۴ م




## یادونه

شهامت له سرمقالې پر ته دنورو لیکنو
مسؤلیت په غاړه نه اخلي

## لړلیک


| ګڼه | عنوان | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | سرلیکنه ........ | ۱ |
| ۲ | پیام تبریکی عید فطر ........ | ۳ |
| ۳ | امریکایی بادارانو دواړه لاسپوځی سره غاړه ایستل....... | ۷ |
| ۴ | مونږ دغزې له مقاومت نه څه زده کولای شو ........ | ۱۰ |
| ۵ | غلامان څنګه خپل بادار تس نس کړل ........ | ۱۵ |
| ۶ | د داعش تیز پرمختګ او دعراق راتلونکی ........ | ۱۷ |
| ۷ | اسلامی هیوادو کی داسلامیت ........ | ۲۱ |
| ۸ | دغزنی ولایت جهادی مسؤول مولوی قاسم صمیم مرکه... | ۲۶ |
| ۹ | داسلامي او نااسلامي (دیموکراتیک) نظام توپیر........ | ۳۱ |
| ۱۰ | د اسلام تشریح اساسات ........ | ۳۴ |
| ۱۱ | سرپورته کوه دخپلواکۍ بیرغه ........ | ۳۷ |
| ۱۲ | ګلورینی پاڼی........ | ۳۸ |
| ۱۳ | دشهید شیخ الحدیث مولوی عبدالحکیم ژوند ........ | ۴۰ |
| ۱۴ | اسلام او نوي علوم ........ | ۴۸ |
| ۱۵ | داصول فقه او اجتهاد تاریخ........ | ۵۰ |
| ۱۶ | کشتن از اسرائیل حمایت از اوباما........ | ۵۴ |
| ۱۷ | په ۲۰۱۳ کال کی د اسلامي امارت سره یو ځای شوی .... | ۵۶ |
| ۱۸ | تاسیس حکومت الهی ........ | ۵۹ |
| ۱۹ | په غزې د اسرائیلو یرغل اودنړۍ دشرم ........ | ۶۱ |
| ۲۰ | مارګیریت چګونه مریم شد ........ | ۶۶ |
| ۲۱ | داروپا بشری حقوقو محکمې توره پریکړه........ | ۶۸ |
| ۲۲ | زکات فریضه څنګه اداکیږی ........ | ۷۰ |
| ۲۳ | | ۷۵ |
| ۲۴ | | ۷۸ |



ادرس : کابل کارته پروان عقب سینمای بهارستان بریښنالیک : Sham.shahamat@yahoo.com

# سرمقاله

بسم الله الرحمن الرحیم

## دغزې زړه بوږوونکې غمیزه!

## او د اسلامي هیوادو مجرمانه چوپتیا!

له نیږدې درې اوونیو راهیسې دغزې په مجبورو اومقهورو مسلمانانو داسرایل دغاصب او ناوړه رژیم له لورې پرلپسې وحشیانه بریدونه دوام لري، چې یکې دهرې ورځې په تیریدو زیاتوالی راولي او د مخنیوي په لړ کې یې تر اوسه چا کوم موثر ګام ندی پورته کړی.

له جنګي الوتکو اوسمندري بیړیو نه دلس ورځینې وحشیانه بمبار د وروسته د صهیوني رژیم ټانګونه او شوبلې غزې ننوتې اوهلته یې په سوونو بې دفاع مسلمانان شهیدان او په زرګونو نور یې ټپیان کړل!!.

دمنځنې ختیځ دچارو کارپوهان: په داسې نازک اوحساس وخت کې چې نیږدې ګرد منځنی ختیځ دکورنیو اوبهرنیو عواملو له امله په یوه لوی اضطراب، کورنې انتشار اوجنګ وجدال کې ښکیل دی، د صهیونیت رژیم لخوا هلته دمسلمانانو ټولو وژنې ته دوام ورکول اوپه غزه مخامخ یرغل دټولې سیمې لپاره دجدی خطر زنګ بولي!!

هو! له شک پرته اوس مهال دفلسطین اوغزې مسلمانان د نړۍ تر بل چا هرچا زیات مظلوم اومقهور دي، دغزې په خلکو داسرایل دعلني مظالمو په مخنیوي کې دنړۍ دځواکمنو هېوادونو کردار نهایتې مذموم او مجرمانه دی، هر دشعور څښتن پوهېږي چې اسرایل دامریکا لخوا په ورکړل شوې جنګي ټېنکنالوجۍ او دنویو پرمختللو وسلو په ځواک دمسلمانانو وینې داوبو پشان تویوي، په دې توګه دمسلمانانو په وینو نه یواځې داسرایل لاسونه سره دي بلکې دامریکا په ګډون دهغو ټولو هېوادو لاسونه هم وربانديږ لړلي دي کوم چې له دغه ناوړه رژیم نه ملاتړ کوي . دسیاسي کتونکوپه نظر دفلسطین تازه حالات ددې ښکارندوې کوي چې نړۍ کې دمسلمانانو دفریاد اوریدو او ورسره دمرستو ټولې دروازې تړل شوي اواسرایل ته په ازادانه توګه دا اجازه ورکړل شوې چې هغه هر وخت اوهرکله وغواړي په خلاصو مټو دمسلمانانو وینې بهولی شي! امریکا اوغربې هېوادونه په ښکاره تری ننګه اودفاع کوي داوباما داوینا: «چې اسرایل دخپلې دفاع پوره حق لري... » همدا معنونیت لیږدوي چې دنړۍ ځواکمن هېوادونه

او په خاصه توګه امریکا دغزې په جنګ کې برابره ونډه لري !دیته په کتو نړۍ کې دمسلمانانو دځوان نسل په اذهانو کې له نړیوال نظام نه دبغاوت جذبات اواحساسات راټوکیدل حتمي اوطبعي خبره ده ولې هغوئ نن محسو سوي چې دفلسطین په ګډون افغانستان ،عراق اونورو هېوادو کې امریکااو غرب په ګډه د مسلمانانو په ټولوژنه لګیادي، که دا ناهیلو دا حالت هم داسې دوام وکړ ممکن له امله یې نړیوال امنیت ته درنه صدمه ور سي .

غزه کې وروستیو زړه بوږ نوونکو پیښنو وښو ده چې په نړۍ دځنګله د قانون راج دی!دبشر حقوقو د ساتنې او احترام شعارونه اوخبرې درواغ دي، دحیرانتیا وړده که دیو کافر په پښه کې ازغی هم لاړ شي، نوټوله نړۍ کې د غوغا یوه تم کیدونکې څپه راپور ته شي ، هغه ته رسیدلی زیان له بشري حقونو سرغړونه وګڼل شي ! خو بل لور ته هره ورځ چې دمسلمانانو وینې له اوبو نه هم ارزانه بهول کیږي، وربانديې دنړیوالو خولې بندې اوژبې یې ګونګې دي ! تر ټولو دانديښنې وړداده چې د۵۷ اسلامي هېوادو تنظیم (اسلامي کانفرانس) دومره هم ونشوای کولی چې دخپل ژوند انه دثبوت لپاره یې هم یو ګام پور ته کړی وای! ور ته حال د عربې سر مشریزې هم دی ! دواړو تر دې مهاله ونکړ ای شول چې د غه تر ټولو حساسه ستونزه په نړیواله سطحه را پور ته کړې ، دفلسطین شخړې اصلي عوامل راوسپړي او دفلسطینیانو دمشروع جهاد په ملاتړ د نړیوال اذهان قانع کړي.

له دي حقیقت نه انکار ناشونی دی چې دفلسطین په ګډون دنړۍ په مختلفو برخو کې په مسلمانانو روان ظلمونه داسلامي هېوادو دقیادتونو سمه پاملرنه غواړي، ښکاره ده تراوسه په دې اړه ی هیڅ اسلامي هېواد مسؤلانه کردار ندی اداء کړی، داسلامي نړۍ دچارواکو دابې حسې لاپر واهې او ځان غرضي که یولور ته دښمن ته موږال ښنې بل پلو دعواقبو په اعتبار پخپله ددوئ لپاره هم ډاډ وړنده ، خدای مکړه که داسلامي هېوادو د واکمنو ترمنځو دځان غوښتنې ذهنیت هم داسې پاته وي ، لرې نده چې هغوئ به ژر دخپلو دغو تیروتنو تراخه وڅکي

پېښنه داده چې نن دنړۍ عام مسلمانان چې دفلسطینې مسلمانانو مظلومانه حالت وینې هغوئ له زړونو وینې څڅوي، خو څه کولی نشي، او داسلامي نړۍ واکمن دغفلت په درانه خوب ویده دي، هم دالامل دی چې په اسلامې هېوادو کې درعایاوو او چارواکو ترمنځ واټنونه اوخلیج مخ په زیاتیدو دی اوپه چارواکو دخپلو خلکو د بې باورۍ سلنه تر ډارونکي بریده ختلې، چې دمسلمانانو لپاره به ښې پایلې ونلري، باید داسلامې نړۍ واکمن قیادتونه ترهر څه اولیت دمسلمانانو دفاع ته ور کړې، دخپلو رعایاوو سره خواخوږې اوهمدردې زیاته کړې! او په نړیواله سطحه دمسلمانانو دسیاسي، اقتصادي اوفطرې حقوقو دفاع اوساتنه مقدمه اومهمه وبولي.

# پیام تبریکی عالیقدر امیر المومنین به مناسبت فرا رسیدن

## عید سعید فطر

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله رب العلمین، ناصر المجاهدین ومذل الجبابرة والمتکبرین والصلاة والسلام علی إمام الغر المحجلین سیدنا ونبینا محمد صلی الله علیه وسلم وعلی آله واصحابه أجمعین

قال الله تبارک وتعالی: ( إِنَّ اللَّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوْا وَالَّذِينَ هُمْ مُحْسِنُونَ )سورة النحل آیة۱۲۸

و عن معاذ ابن جبل رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: رأس الأمر الإسلامُ، وعَمُوده الصلاةُ، وذِروة سَنَامه الجهاد. رواه الترمذي

برادران مسلمان و ملت مجاهد !

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

به مناسبت فرا رسیدن عید سعید فطر این روز مملوء از خرسندی و برکت را به شما همه مبارکباد می گویم. خداوند متعال روزه، قیام، صدقات، دعاها، جهاد و همه اعمال نیک تانرا که در رمضان انجام داده اید قبول نماید.

برادران مسلمان !

جای خرسندی و شکر است که خداوند متعال این روز را هنگامی بر ما می آورد که شاهد فتوحات و دست آوردهای پیهم در میدان های جهادی می باشیم.

الحمد لله به سطح کشور، وضعیت نظامی به نفع مجاهدین میباشد ، اولاً به نصرت خداوند متعال ثانیاً به برکت فداکاریهای بی شائبه مجاهدین و ملت، از مناطق زیاد گلم اشغالگران جمع شده است، مراکز مهم دشمن در شهرها تحت حملات پیروزمندانهء مجاهدین قرار گرفته است. حاکمیت و ادارهء امارت اسلامی بر مناطق مفتوحه نسبت به گذشته قویتر شده است. صفوف مجاهدین نسبت به هر وقت دیگر منسجم، فعال و متحد می باشد. مگر جای تأسف است که دشمن از بعضی فرزندان غافل و بی خبر ملت، منحیث وسیله برای بدست آوردن اهداف شوم خویش استفاده می کند ! خود از میدان جنگ به عقب می رود و آنها را به خطوط جبهه می فرستد. من بر عساکر، پولیس و عموما بر همهء صف مخالف صدا میکنم که برخلاف مردم خود و برای بدست آوردن اهداف اشغالگران، خود را تباه نکنید. بیایید در پهلوی مردم خویش یکجا با مجاهدین امارت اسلامی علیه دشمن مشترک جهاد نمایید تا سعادت دنیا و آخرت نصیب تان گردد.

از علمای کرام، بزرگان قومی و متنفذین نیز امیدوارم که این جوانان ناآگاه را که از جانب دشمن استعمال می شوند بفهمانند، همچنان والدین و خویشاوندان شان کوشش کنند که فرزندان خودرا از زیان دنیا و آخرت نجات دهند.

مجاهدین باید با آنعده از اشخاصیکه از صف دشمن جدا میشوند، مطابق با پالیسی امارت اسلامی افغانستان برخورد پر از همدردی نمایند، آنها را خوش آمدید بگویند، و از قهرمانی آنعده از افغانهای با احساس قدردانی نمایند که بر دشمن حمله می کنند سپس به صف جهادی می پیوندند وآنها را نوازش دهند.

الحمد لله سطح همکاری و اعتماد مردم بر مجاهدین بیشتر شده است، من به نمایندگی مجاهدین، از مردم دین دوست و کشور دوست خود سپاسگذاری می کنم و در بدل حمایت مخلصانهء آنها، از خداوند متعال برای شان سربلندی، آرامی و سعادت دارین را خواهانم.

فعالیت های امارت اسلامی در بخش های دیگرنیز، همانند عرصهء نظامی در حالت پیشرفت و نو آوری است. در بخش های معارف، صحت، اقتصاد، قضاء، دعوت و ارشاد، فعالیت های فرهنگی، شهداء و معیوبین، کنترول وتفاهم با موسسات در ساحهء کاری آنها، امور زندانیان و جلوگیری از تلفات ملکی خدمات ارزنده یی تقدیم گردیده است. در حالیکه از خداوند متعال برای مسئولین و کارمندان آنان در مقابل هر تلاش شان اجر می خواهم، هنوز هم امیدوار پیشرفت های بهتر و موثر تر می باشم.

به اثر سعی و تلاش دفتر سیاسی امارت اسلامی افغانستان که بر اساس رهنمایی های ما امور خودرا به پیش می برد، امارت اسلامی به سطح جهان و کشور وجاهت سیاسی به دست آورده است. جهت های زیادی که قبلا با ما مخالفت داشتند، اکنون امارت اسلامی را منحیث یک واقعیت می پذیرند، درهمین سلسله در نتیجهء سعی و تلاش نمایندگان سیاسی امارت اسلامی تبادلهء اسراء با امریکا دست آورد نیکی بود.

ادارهء نصب شده به دست اشغالگران درکابل از هر جهت به ناکامی مواجه شده است، تا حدیکه اعتماد تمویل کنندگان خارجی و حامیان داخلی خودرا از دست داده است، در فساد اداری، غصب ملکیت ها و چور و چپاول دارایی های مردم، مقام اول را بدست آورده است.

پروسهء جعلی به نام انتخابات ادارهء کابل و دموکراسی غربی را هنوز هم به رسوایی مواجه کرد، در حقیقت هدف اشغالگران و دوستان داخلی آنان از این پروسه وانمود کردند تبدیلی برای افغانها بود، مگر ملت افغان از ابتدا به اهداف دشمن پی برده بودند، و به همین سبب اکثریت مردم پروسهء نامبرده را تحریم کردند. اکنون همه مشاهده کردند که سخن از انتخابات و رأی مردم بطور شعار، برای فریب دادن مردم، ایجاد نفرت و بدبینی های قومی، سمتی، لسانی وغیره زده می شد، همه مشاهده می کنیم که مطابق به پیشگوی ما، این بار نیز درامهء نامنهاد انتخابات مانند گذشته انتصابات امریکایی گردید.

اختیارا اکنون نیز در دست اشغالگران است، هر چیزی راکه آنها میخواهند پذیرفتن آن بالای دوستان داخلی شان بدون در نظرداشت منافع کشور و مردم لازمی می باشد.

ما به حکومت های امریکا و کشورهای اروپایی که عساکر شان در افغانستان هستند و یا در آینده در فکر نفوذ سیاسی و بقای پایگاههای نظامی در اینجا هستند، می گوییم که افغان ها را بگذارید تا مطابق به

نیازمندی های دینی و ملی خویش حکومت اسلامی و مستقل را تشکیل دهند ، اگر شما این حق را از آنها سلب می کنید ، این کار نه تنها ظلم و پامال کردن نورم های انسانی است؛ بلکه نتایج آن برای شما نیز چنان خواهد بود که در جریان سیزده سال گذشته مشاهده کردید. شما اکنون این حقیقت را درک کرده خواهد بودید که مردم افغانستان که تاریخ شان مملوء از مبارزه برای اسلام و استقلال است، هیچگاه حکومت های دست نشانده دیگران را نمی پذیرند.

به باور ما جنگ افغانستان زمانی به پایان می رسد که تمامی اشغالگران خارجی از افغانستان خارج شوند و اینجا یک نظام اسلامی و مستقل حاکم شود ، باقی گذاشتن عساکر محدود آنان زیر هر عنوانی که باشد ، به معنای ادامهء اشغال و جنگ است، زیرا که هیچ کس در خاک خود نیروهای اشغالگر را تحمل کرده نمیتواند.

به کسانیکه درفکر امضا پیمان امنیتی با اشغالگران هستند می گوییم که از طولانی ساختن اشغال و تمدید اسباب و امور جنگ دست بردارند ، موجودیت اشغالگران در کشور ما به نفع هیچ کس نیست، با ادامهء جنگ امنیت افغانستان و کشورهای منطقه خرابتر می گردد ، بخصوص نبود نظام اسلامی، استقلال سیاسی و تمامیت ارضی در کشور، باعث توسعهء اشغال فرهنگی و تباهی نسل های آینده میگردد.

به کشورهای جهان و همسایه همچو گذشته یکبار دیگر اطمئنان می دهیم که مبارزهء ما برای نظام مستقل اسلامی و استقلال کشور ما است، ما نه ارادهء مداخله و ضرر رسانیدن در امور همسایگان، کشورهای منطقه و کشورهای جهان را داریم و نه موقف ضرر رسانی را تحمل کرده میتوانیم و از آنان نیز خواهان همچو موقف هستیم.

و بر مجاهدین در همهء مناطق سرحدی صدا میکنم که از سرحدات خویش حفاظت کنید و با کشورهای همسایه بر اساس احترام متقابل روابط نیک برپا نمایید.

دربارهء تحولات و حوادث اخیر در شرق میانه باید بگوییم که کشورهای نیرومند جهان، مردم این مناطق را بگذارند که به آرمان های مشروع خویش برسند ، این قابل توجیه نیست که قیام های مردمی به الزام بی مورد تروریزم متهم شوند سپس تحت بمباران قرار گیرند ، و یا زندان ها از آنان مملوء گردد ، با چنین اقدامات کس نمیتواند اراده مردم را برهم شکند ، اینکه در ماه مبارک رمضان رژیم غاصب اسرائیل صدها فلسطینی مظلوم را شهید ، زخمی و بی خانمان کرده است، ما این عمل وحشیانه را به الفاظ شدید تقبیح می کنیم و به جهان بخصوص جهان اسلامی، صدای مینمایم که سکوت در مقابل این مظالم آشکار بی انصافی بسا بزرگ و به زیان همه است، باید برای جلوگیری از چنین مظالم بزرگ گام های عملی و مثبت برداشته شود تا امنیت منطقه و جهان بیشتر خراب نگردد.

مجاهدین شجاع امارت اسلامی !

وجیبهء دینی و ملی تان است که برای آسایش مردم و بدست آوردن دل های شان تلاش کنید ، غرور، کبر، استفاده از اسلحه بدون دلیل شرعی، تهدید کردن مردم، بیم دادن و آزار دهی، زیان رسانیدن به سر، مال و عزت مردم جنایات بزرگی اند که به ارتکاب آن، در دنیا و در آخرت از محاسبهء آن نجات نخواهد یافتید ، اخلاق شما در مقابل مردم باید تنها تحمل، تواضع، بردباری، ایثار و احترام متقابل باشد ، باید به یاد داشته باشیم که خداوند متعال به شعارهای ظاهری و شکل های ما نمی بیند بلکه بسوی دل ها و اعمال ما می

نگرد، که با مردم به چه اخلاق مواجه میشویم.

مجاهدین باید در مناطق تحت تسلط امارت اسلامی برای ایجاد عدالت و امنیت تلاش های مخلصانه به خرچ دهند، جلو دزدان، قطاع الطریق و اشخاص تخریب کار را بگیرند و برای مردم فضای امن و آرامش را مهیا سازند.

در جریان عملیات جهادی باید متوجه جان و مال مردم باشند تا خدای ناخواسته آنان متضرر نشوند. اداره ٔ تعیین شده برای جلوگیری از تلفات ملکی، نیز باید با تمام جدیت متوجه وظیفهٔ مهم خود باشد تا از تلفات ملکی جلوگیری به عمل أید.

مجاهدین باید به یاد داشته باشند که استقامت و پیروزی ما در مقابل اشغالگران خارجی تنها به برکت چنگ زدن به ریسمان الله تعالی می باشد، مجاهدین باید به همین شکل در چارچوب اطاعت الله تعالی و رسول الله صلی الله علیه وسلم به اطاعت اُمرا خویش ادامه دهند، از نفاق، اختلاف و تعصب اجتناب ورزند، رابطهٔ اتحاد، برادری، و اعتماد با یکدیگر را قویتر سازند، و صف جهادی را در مقابل دشمن همچو بنیان مرصوص شکست ناپذیر نگهدارند.

هموطنان مجاهد!

اینکه کشور ما در آستانهٔ استقلال و آزادی قرار دارد، باور داریم که خداوند متعال همانند افتخار شکست کفر و ظلم، به افغان ها نعمت نظام آسایش دهنده و خودکفای اسلامی را نیز خواهد بخشید.

افغانستان خانهٔ مشترک همهٔ افغان ها است، هر افغان حق خدمت آن را دارد، امارت اسلامی نظامی را به وجود خواهد آورد که در آن هر قشر، قبیله و گروه جای داشته باشد، و هیچ کسی احساس بیگانگی نکند، در بخش اقتصادی، با استفاده از کمک های بین المللی تركيز بر زراعت، مالداری و استخراج معادن صورت خواهد گرفت و بر سیستم های زیربنایی، انکشافی و تخنیکی توجه جدی خواهد نمود. نظامی که خادم اجتماع باشد، و در بخشهای تعلیمی، تربیوی، فرهنگی، اجتماعی، بازسازی و انکشافی در روشنی عدالت و شفافیت خدمت مردم را انجام دهد.

امارت اسلامی چنانچه نفاذ نظام اسلامی را ضامن پیروزی دنیا و آخرت می داند، بدست آوردن و ترویج ساینس، تکنالوژی، علوم بشری، دست آوردهای جدید و مثبت را برای استحکا، برپا ایستادن و بقای حکومت نیرومند و ملت قوی ضرورت حیاتی می پندارد. در این راستا ما همه آن تبلیغاتی را شدیدا رد میکنیم که علیه امارت اسلامی صورت می گیرد و یا اتهام مخالفت با تعلیم بر آن وارد می گردد. امارت اسلامی طلب علم را یک فریضهٔ دینی می پندارد، و برای زنان و مردان در چارچوب شریعت به تمام آن حقوق قایل و قانع است که دین اسلام برای آنان داده است و برای عملی کردن آن خودرا متعهد می داند.

در اخیر بار دیگر عید را به شما مبارکباد می گویم، خداوند متعال شما را توفیق دهد که در این روزهای مبارک خوشی، بطور خصوص مردم نادار و اندوهگین را دست گیری نمایید، بر سر یتیمان دست شفقت بکشید، با خانواده های شهداء، زندانی ها و مهاجرین همکاری کنید، و پرسش، خدمت و حوصله افزایی زندانیان و زخمی ها را بکنید. والسلام.

خادم اسلام امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد

۲۷ رمضان المبارک ۱۴۳۵ هـ ق

۳/۵/۱۳۹۳ هـ ش

۲۵-۷-۲۰۱۴ م

# امریکایي بادار

(شاهد)

## دواړه لاسپوڅي سره غاړه ایستل !!

دغرب په میو دخمار اشرف غني (احمد زي) او د(کولاب ) د زاړه ځیره خور اووطن پلوري ډبل (عبدالله) ترمنځ په اصطلاح انتخاباتي نااندرۍ چې له څو اوونیو څخه راپدیخواېې دهیواد سیاسي افق په مصنوعي لوخړو پوښلی و،اوله حالاتوله تحلیل او شنني غافل اذهان یې په ډیره اندیښنه کې اچولې وو ،سربیره پردې چې لویدیځ نمانځونکي یې یولوی داخلي بحران او کشمکش تلقي کړي ،له بده مرغه ځنیو مغرضو خارجي کړیو په خورا شعوري ډول دقدرت پر سر دا ډول پړسول شوی اختلاف دهیواد دتجزیې په لور یوه هڅونه بلله او د حل ځنډ یا تاخیریې ددې کشالې د لا یتناهي امتداد لامل باله ،چې بالاخره دنوموړیو (احمدزي اوعبدالله ) سکه امریکایي بادار خارجه وزیر (جان کیرې )په مداخله حل او درسنیزو معلوماتوله مخې به په دریو اوونیو کې به انتخاباتي صندقونه بیا وپلټل شي او دجعل او تقلب نه ډکې رأیې به بیا په نوي رنګ وشمیرل شي .

معلومه نده چې رښتیا هم (جان کیرې) دداړو غلامو کاندیدانو منځ کې منځګړیتوب کړی او که دستر ګو په بر ګولو او تهدید آمیزه لهجه یې دواړه لورې دې اړیستي ، چې په فوري او عاجل د ډول سره پخلا او درأیو شمیرنه بیا ومني ،ځکه (اشرف غني )دغرب حلقه بګوش غلام او دمسیحیت په اقدارو میین او دده دښځې (لارا غني )په وینا چې نوموړی به غرب کې ددې له کلیسا سره ډیره مینه درلوده او هلته به هر وخت له خپلې دې عیسوۍ میرمن سره کلیسا ته ته ،(که چیرته اشرف غني لوبه وګټي، نوله بده مرغه به راتلونکې کې دیوه اسلامي هیواد په حیث دافغانستان مشره میرمن یوه عیسوۍ ښځه وي) !!!چې دا به دیوه ستر او عنعنوي اسلامي هیواد (افغانستان) په روڼ تاریخ کې یو ډیر شرم آور کار ، دهیواد اسلامي تشخص به (خدای ج )مکړه دنورې اسلامي نړۍ په سیالۍ کې څوپیړۍ شاته لاړ شي او دافغانانو دپت پوزه به غوڅه شي !

او بل لورې ته ډبل( عبدالله ) خو یوازې دامریکایانو نه ، بلکې دفرانسي په ګډون دګرد غرب او زاړه شرق دبد نامې نظار ډلګۍ هغه (حلال نمکی) ځیره خور دی، چې له بر کته یې دادی نن دتصور خلاف دخپلو بادارنو په مټ دارګ په هوسونو کې نښیږې ،دوئ هماغه څوک وو،چې دامریکایانو په ډالرو مست اوخمار یې دامریکایانو لپاره هغه ناځوانمردانه چوپړ وکړ، چې (بچه سقاو،شاه شجاع او کارمل ....) غوندې دتاریخ بدنامې څیرې یې په کولو شرمیدلې !!!

داځکه چې (جان کيرۍ) دداسې اړو غوړمالانو او ځيره خورو نه څه مجبوريت درلود ! چې ترمنځ يې سولې ته له زرګونو کيلومتره ليرې هيواده هوا کې راغی اوپه منځګړيتوب يې سره غاړه ايستل ،هغه چې بايد کړي يې وی، هغه پريکنده امريکايي حکم ،ګواښنه او تهديد ! !چې د(کرملين ،کولاب ،تهران ،پاريس او سپينې ماڼۍ) غوندې مشترک حلال نمکې (ډبل عبدالله)به په ځوړند سر ورته دهوکي ! ! سر خوځولی وي او دخلکو دغولولو لپاره به يې په مطبوعاتي پاڼواو بريښنايي صفحاتوکې د(ملي يووالي حکومت )رنګ ورکړی وي او ښايې دا هغه غښتلی احتمال وي، چې شونتيا يې ډيره پياوړې وي او درد وړ نه ده .

خوتردې ډيره خطرناکه خبره هغه ده، چې له امله به يې دافغانستان واحد جسم (خدای ج مکړه ) ټوټه ټوټه شي او مرکزي حکومت به په ايالتي او سمتي يا قومي متعددونو حکومتونو وويشل شي اوهغه داسې چې (کيرۍ )د احمدزي او عبدالله سره منلې، چې په اصطلاح اوسني اساسي قانون کې دشمال دبد نامې ټلوالې دپاتې شونې (عبدالله )دخوشحالولو لپاره ادلون بدلون يا څه تعديلات راشي، دعظمی صدرات پوست به دعبدالله دراضي کولو لپاره پکې زيات شي ، شايد افغانستان دشمال ،جنوب ،مشرقي او نورو ورته ټوټو باندې وويشل شي او يو مبهم ايالتي کاواکه حکومت به رامنځته کړي، چې دامريکايانو غوندې نور سيمه ايز هيوادونه به پکې خپلې موخې پوره او ددې کمزورې او متزلزل حکومت چارې به هم دداسې غلام ضميرو په لاس کې وي ،چې نه به ورته داسلام دين کوم اهميت لري او نه به ورته دافغانستان اسلامي خاوره دقدر وړ وي ......چې دا دځينو کړيو هغه شومه اراده ده، چې له ډيره وخته ورته کار کوي او دداسې کيدو لارې شمارې .

که نه دملي يووالي موضوع خو لا د(دوستم )خونکار جنرال په معاونيت کې اشرف غني حل کړې ،او عبدالله دانجنير محمد خان په مرستيالۍ کې ! دوئ کې چې قومي هيجان ډير دی او اسلامي ياهم وطني محبت يې په صفر کې ضرب دی تل دخپلو شخصي ګټو لپاره اسلامي او ملي ګټې تر پښو لاندې کړي او هاغسې چاکر پاتې شوي، چې بادران يې خپل دې خدمت ته هيښ کړي .

تحليلګران دجان کيرۍ او خپلو لاسپوڅو کانديدانو (مثلث توافق )او پټې معاملې دې پايلې ته رسولي، چې دا کار به ګوندې دهيواد دتجزيې په لوړه بيه تمام شي او د دريواړو لوريو ددې پټې موافقې په ترڅ کې به دملي يووالي په نوم حکومت داسې وي ،چې له امله به يې يو فدرالي يا ايالتي کاواکه اداره رامنځته اومرکزي اداره به له منځه لاړه شي، چې په تدريجي توګه به دهيواد په تجزيه تمامه شي .

نړيوالو رسنيو پدې جملو دجان کيرۍ کنفرانس او دده کار پايله خپره کړه چې :

جان کېري تېره شپه ناوخته يوه خبري کنفرانس ته وويل دغه موافقه به ګټونکي ته لار پرانيزي چې د ملي يووالي يو حکومت جوړ کړي، "دواړو نوماندانو موافقه کړې ده چې د پلټنې پايلې به مني. د ټاکنو ګټونکی به ولسمشر وي او بريالی نوماند به په سملاسي ډول د ملي يووالي يو حکومت جوړوي."

خو په کنفرانس کې د ملي يووالي حکومت د څرنګوالي په اړه ډېر جزييات ورنه کړای شول. مخکې دواړو نوماندانو له يو بل سره د ګډ حکومت خبره رد کړې وه .

اشرف غني احمدزي د ټاکنو په تاريخ کې دا تر ټولو يوه لويه پلټنه وبلله او هرکلی يې وکړ، "موږ دواړو منلې چې د دې څېړنې نتيجه به د زړه له کومې نه منو او هر څوک چې د دې څېړنې په نتيجې کې د افغانستان

ولسمشر اعلان شي بل ورور به يې د ورور په حيث مني موږ په دې هم موافقه کړې چې پس له دينه چې نتايج اعلان شي د ملي وحدت يو حکومت به په ګډه وي"

د ټاکنو بل نوماند عبدالله عبدالله هم وويل، چې دې تړون ته ژمن دی، "موږ خوشحاله يو چې نن دا موافقي ته موږ رسيدليو سره تخنيکي موافقت نامه او همدا رنګه سياسی موافقی ته هم رسيدلی يو چې انشالله يو ځل چې دا پلټنې ترسره شي او په پوره ډول ول ترسره شي انشالله زمينه د ملی وحدت د يو حکومت هم برابره ده."همداسې نيويارک ټايمزخپل معلومات دموضوع په اړه داسې خپاره کړي دي :

نيويارک ټايمز ورځپاڼې ته افغان او امريکايي چارواکو د هغې موافقې په اړه معلومات ورکړي چې د امريکا د بهرنيو چارو وزير جان کيري په منځګړتوب د ولسمشرۍ د دوو کانديدانو اشرف غني احمدزي او عبدالله عبدالله ترمنځ شوې ده.

ورځپاڼې د هغو مقاماتو نومونه نه دي ياد کړي چې په دې اړه يې معلومات ورکړي او ويلي يې دي چې هغوی نه غوښتل چې نوم يې واخيستل شي ځکه چې هيڅ لوری حق نه لري چې په دې اړه خبرې وکړي او له بلې خوا طرحه لا په خورا لومړنيو پړاوونو کې ده.

نيويارک ټايمز وايي چې دواړو خواوو منلې چې د افغانستان د يووالي د ساتنې لپاره به په تدريج د صدارت چوکۍ رامنځته کوي.

ورځپاڼه د چارواکو په قول وايي، سره له دې چې څه باندې يوه لسيزه پخوا د امريکا په ملاتړ په افغانستان کې رياستي نظام جوړ شو چې ټول واک يې ولسمشر ته په لاس ورکړی خو بايد اوس ومنل شي چې د سياسي، قومي او ډله ييزو دښمنيو د زياتېدو له کبله د افغانستان يووالي ته د متوجه خطر د مخنيوي لپاره پکار ده چې په نظام کې بدلون راوستل شي.

د هغو کسانو په وينا چې خبرو ته نژدې ول، په نظام کې بدلون د عبدالله عبدالله، چې د افغانستان ټول سياسي نظام يې له خطر سره مخامخ کړی و او د جلا حکومت د جوړولو اعلان يې کړی و، اساسي هدف و..........

لکه چې مو مخکې پرې صراحت وکړ،چې د(کيرې) سفر دداسې سترې توطئې غمازي کوي ،چې هغه به دعقيدې او خپلواکۍ له جهته هيوادني خطرات له ځانه سره مله ولري ،دعبدالله دخوشحالولولپاره به دمرکزي ادارې تنه او بوده وشلوي اودنظار ډلګۍ دپاتې شونې لپاره به ددې چانس برابرکړي ،چې دقومي او سمتي تعصب په روحيه رغول شوي غلامه اداره کې يا لومړني کس يا هم کومه اجرائيوي دنده تر سره کړي او هم دامريکايانو لپاره به ددې ښه فرصت ميسر شي ،چې دامنيتي سند په نوم دتلپاتې پوځي شتون تحريري سند لاسليک دداسې اسلام پلورنکيو او وطن فروشانو څخه په ډيره اسانۍ سره ترلاسه کړي اوخپل استعماري اهداف ترسره کړي .

خو اسلامي امارت اوافغان مجاهد ولس ژمن دي، چې روانو جهادي څپوته به د(جان کيرې) دشګو بندونه ټينګ نشي او نه به داسې اسلام ضد دسيسې کومې منطقي پايلې ته ورسيږې ،او باور دی، چې داستقلال دلارې پتنګان به ددې دسيسې همداسې کاميابه مقابله وکړي، لکه څنګه يې له (۲۰۰۱ز) کال راهيسې ديرغلګرو داستبداداو وحشت مقابله کړې او تر ننه يې خپلو اهدافو ته له رسيدو ايسار کړي دي !!

# مونږ د غزې له مقاومت نه څه زده کولای شو؟

شاهد غزنیوال

د روان کال د جون په ۲۱ نیټه د فلسطین په الخلیل ښارکې د دریو صهیونستي ځوانانو له تري تم کیدو او بیاوژل کیدو وروسته صهیونستي رژیم د غزې په تړانګه هوايي برید پیل کړ.

هغوی پرته له کومه سپیناوي د دغو وژل شویو صهیونستي ځوانانو دوژل کیدو پړه په غزه کې د حماس غورځنګ پرغاړه وروا چوله او هغه یې د صهیونستي ځوانانو د یرغمل کولو او بیاوژلو مسؤل وګاڼه.

د دې لیکنې تر لیکلو (۲۲/۷/۲۰۱۴) پورې د صهیونستي رژیم د دغه وحشیانه برید په ترځ کې خواوشا ۲۰۰ فلسطینیان شهیدان شوي او ۳۵۰۰ تنه ژوبل شوي.

په دغه وحشیانه ناانډوله جګړه کې تراوسه پورې د فلسطیني منابعو په استناد ۵۲ اسرائیلي پوځیان وژل شوي، ۱۵۰ په شاوخواکې ژوبل شوي او یو نفریې د حماس غورځنګ د پوځې څانګې (قسام) لخوا ژوندی نیول شوی دی.

د نړیوالو پوځي ماهرینو د څېړنو په حواله ویل کیږي چې د فلسطیني مجاهدینو او صهیونستي یرغلګرو ځواکونو ترمنځ روانه جګړه تر ټولو خونړۍ او په عین وخت کې د صهیونستي چارواکو لپاره تر ټولو ملامـاتوونکې جګـړه بلل شـوې؛ ځکه صهیونستي چارواکو له تیرو ۸ کلونو راهیسې دا زیار ایستلی چې غزه ترخپلې څمکنۍ، هوايي اوبحري محاصرې لاندې وساتي، خو د هغوی د دغو ټولو هڅوباوجود حماس وکړای شو چې په پوځي لحاظ په داسې تسلیحاتو ځان مجهز کړي چې د صهیونستي رژیم ټول پوځي، استخباراتي او دفاع ځواک وننګوي او په خپل لاس جوړ کړیو توغندیو او ابابیل نومو بې پلوټه الوتکو سره د تل ابیب په زړه کې صهیونیستي اهداف په نښه کړي.

نړیوال جنګي ماهرین دیته ګوته په غاښ دي چې حماس څرنګه وتوانید وچې په دغسې اختناقي وضعیت کې چې له ځمکې ،هوا او سمندر څخه تر سختې محاصرې اوڅارنې لاندې خو بیاهم هغوی وکړای شول چې په خپل لاس جوړکړیو توغندیو او بې پلوټه الوتکوسره د نړۍ په کچه دوهم نمبر قوي اسرائیلي پوځ ته ماتې ورکړي.

په محاصره شوې غزه کې د حماس جهادي غورځنګ وکړای شول چې داسې بې پلوټه الوتکې جوړې کړي

کومې چې ټوله عربي نړۍ يې له خپلو ټولو مادي امکاناتوسره سره دغو له جوړولو ناتوانه ده.

د غزې تړانګې د نفوسو ټوله شميره دوه مليونه او ځمکنۍ مساحت يې ۳۶۰ کيلوميتره مربع دی چې ۴۱ کيلوميتره يې اوږد والی او ۱۵.۱۵ يې عرض دي.

دغزې ځمکنۍ مساحت د ټول فلسطين له مساحت څخه يونيم٪ تشکيلوي او د ټولې عربي نړۍ له مساحت څخه ۰٪ تشکيلوي ، له دغه جغرافيايي اوبشري کموالي سره سره غزه له تيرو اتوکلونو راهيسې د اسرائيلو له لوري تر ډيرې سختې محاصرې لاندې ده اوپردې علاوه تقريبا په هرو دووکلونوکې يو ځل د صهيونستي يرغلګرو لخوا تر سختې ځمکنۍ او هوايي حملې لاندې هم نيول شوې ده.

يوازنۍ مواصلاتي لاره چې غزه له نورې بهرنۍ په تيره عربي نړۍ سره نښلوي هغه د رفح په نوم سرحدي بندر دی چې له مصره سره په پوله پروت دی خو د دغې ۱۴ ورځنۍ خونړۍ جګړې پرمهال مصري سرحدي ځواکونو هغه هم دفلسطينيانو پرمخ تړلې تردې او په ډيرو استثنايي حالاتوکې يې مصرته دځينو خطرناکو زخميانو د انتقال پرمهال د محدود وخت لپاره خلاصوي.

ښه نو د حماس د مجاهدينو د برياليتوب رمزپه څه کې دی چې د دغو ټولو موانعو او مشکلاتو باوجود هغوي داسې تاريخي کارنامه ترسره کړه چې ټوله عربي نړۍ يې له ترسره کولو عاجزه ده.

د فلسطين د اسلامي مقاومت غورځنګ (حماس) چې دغزې سياسي واکمنۍ هم د دوی په لاس کې ده د خپل تنظيمي تشکيل له مخې د ټولو عربي سازمانونو او دولتونو په کچه يومنظم اسلامي تنظيم دی چې په رأس کې يې يوشمير داسې په اسلامي تربيه روزل شوي شعوري مخلص او وطن پاله اشخاص قرارلري چې تل يې خپل ديني او ملي مصالح په شخصي او تنظيمي مصالحو مقدم بللي.

هغوي په شعوري لحاظ له خپلې اساسي قضيې (د مسجد اقصی له ازادي) څخه دفاع کوي ، هغه يې د خپلې مبارزې اساس بللی او په خپل ټول ۲۷ کلن تاريخ کې تر اوسه پورې له دغې اساسي قضيې څخه ديوه ټکي په اندازه هم تنازل نه دی کړی.

دغه جهادي تنظيم (دفلسطين د اسلامي مقاومت غورځنګ) په کال ۱۹۸۷ کې د شيخ احمد ياسين لخوا تأسيس شو.

تر اوسه پورې د حماس مؤسس شيخ احمد ياسين اودهغه نيږدې ملګري عبد العزيز الرنتيسي دخپلې دغې غوښتنې (له مسجد اقصی څخه دفاع او د فلسطين ازادولو ) په لاره کې شهيدان شوي اونور تأسيسي اعضاء يې د اسرائيلو لخوا تر ډول ډول مشکلاتو لاندې نيول شوی ، خو د دوي په جهادي تګلارې کې نه کوم انحراف راغلی او نه هم تنازل.

په غزه کې د فلسطيني ادارې اوسنی مسؤل اسمعيل هنيه چې د ۲۰۰۶ کال په ټول ټاکنوکې د حماس تر برياليتوب وروسته د فلسطيني حکومت لومړی وزير وټاکل شو اوس هم په غزه کې د مجاهدينو د مقاومت چارې رهبرې کوي او د صهيونستي ځواکونو په خلاف د مقاومت قومانده هم د ده لخوا ورکول کيږي.

**د حماس دبرياليتوب اساسي عوامل:**

د حماس چارواکي له خپلو امکاناتو او وخت څخه په استفادې سره کوښښ کوي چې په علمي ، تخنيکي او پوځي لحاظ خپل ځان مجهزکړي ، هغوی په خپلو

همدغو ستونزمنو شرائطو کې د تعليم او تربيې، بياجوړونې، پوځي اعداد، او روغتيايي چارو فعال ساتلو ته دومره توجه کړې چې په دغو ټولو برخو کې له اسرائيلي رژيم سره سيالي کړې.

هغوی د خپل همدغه فعاليت له مخې اوس يوملیون داسې توغندي لري چې د صهيونيست رژيم دفاعي سيستم د هغو د شنډولو توان نه لري اودوی کولای شي دهغوی په وسيله د صهيونسيت رژيم پلازمينه تل ابيب ښار په نښه کړي.

هغوي په خپلونه امکاناتو سره داسې هجومي او استخباراتي ابابيل نومي بې پلوټه الوتکې جوړې کړې چې په همدې جګړه کې يې د تل ابيب په ښار کې د دفاع وزارت اړوند نقشې عکاسي او په کاميابي سره بيرته غزې ته راوګرځيدې.

هغوی په خپلو نه امکاناتو سره داسې دفاعي کوماندويي ځواکونه وروزل چې هم يې په ځمکه، هم په سمندر او هم په هوا کې د صهيونيستي رژيم پوځي ځواکونه او د هغوي پوځي او سري استخباراتي تأسيسات تر کاميابو بريدونو لاندې ونيول، هغوي ته له درانه تاوان ور اړولو وروسته په کاميابي سره غزې ته ستانه شول.

همدا اوس د حماس په لاس جوړشوي توغندي له غزې څخه د ۱۲۰ کيلو ميترو په فاصلې سره د اسرائيلو په منځ کې هرځای چې دوي وغواړي په نښه کولای شي، په داسې توګه چې د صهيونيستي رژيم پرمختللي رادارونه، او دفاعي سيستم يې له مخنيوي څخه عاجزدی.

د دغو پوځي پرمختګونو ترڅنګ حماس وکړای شول چې د خپل تعليم او تربيې د ادارې په وسيله د غزې د خلګو تعليمي سويه دومره لوړه وساتي چې هغوي په تعليمي لحاظ د صهيونستي رژيم له معارف سره مقابله وکړای شي.

د روغتيا په برخه کې يې داسې لاسته راوړنې لري چې د غزې د خونړۍ جګړې ټول مجروحين په نه امکاناتو کې د غزې په داخلي روغتونونو کې تداوي کوي.

د بيارغاونې په برخه کې يې داسې اقدامات ترسره کړي چې د صهيونيستي الوتکو د دغوسختو بمباريو له موجوديت سره سره يې په غزه کې د بريښنا، اوبو رسولو او نورو اساسي اړتياوو ټول سيستمونه فعال ساتلي، اوکه کوم يو يې په بمباري کې تخريب کيږي په هماغه دستي يې د خپلو فني پرسونلو په وسيله ترميموي.

همدا راز هغوي په بريښنايي ميډياکې دومره پرمخ تللي دي چې د صهيونيستي رژيم په تلويزوني شبکو باندې په بريد کولو سره هغه په خپل واک کې راولي اوبيا د هغوی له شبکوڅخه په عبري ژبې د صهيونستانو خلاف تبليغات کوي.

دحماس ټول چارواکي په استثناء د خالد مشعل چې نوموړی د دغه غورځنګ د سياسي دفتر مشر دی په بهرکې اوسي نور ټول پوځي، سياسي او ملکي چارواکي په غزه کې دخپل ولس ترڅنګ اوسي او ټول هغه مشکلات چې دغزې ولس ورسره مخ دی تر ټولو له مخه دوی پر ځان منلي.

د حماس چارواکي له خپل ولس سره تر حد زيات اميزش او ګډون لري، تردې چې کله هم د غزې او فلسطين په هرګوټ اوسيمه کې د صهيونستي يرغلګرو لخوا کومه حادثه پيښيږي تر ټولو له مخه نوموړي چارواکي د حادثې له ټولو تفصيلاتو ځان خبروي اوبيا د هغې په اړه له خبرې رسنيو سره ژوندۍ مرکې کوي او په خپلو مرکو کې د حادثې د موقعيت، دحادثې دقربانيانو

او د حادثې د جزئیاتو په اړه داسې توضیحات ورکوي لکه څپله چې دوی په محل د واقعې کې ولاړوي او هغه معرفي کوي.

د بیلګې په توګه کله چې د خلیل په ښارکې صهیونیستي ځواکونو او صهیونستي ځواکونو د محمد خضیر په نوم یو ۱۲ کلن تنکی زلمي شهید او ژوندی وسوځاوه، په دې اړه فلسطیني ځوانانو د اسرائیلو پرخلاف لاریونونه پیل کړل، د حماس د سیاسي دفترمشر خالد مشعل د دغې حادثې په اړه ځانګړې مطبوعاتي کانفرانس دائر او په هغه کې یې د محمد خضیر له کورنۍ سره د ځانګړې خواخوږي ښودلو ترڅنګ د صهیونستي قاتلینو لخوا د نومړې د شهادت او مظلومیت ټوله حادثه ذکر کړه، دشهید شوي محمد خضیر دکورنۍ ،دهغه د اړونده قبیلې ، او د هغه د پلار،مور او ټولې کورنۍ په نوم اخیستو سره یې د هغوي د شجاعت یادونه وکړه او هغه یې د ټول فلسطین یومظلوم شهید وګانه.

دهغه په تعقیب چې کله اسمعیل هنیه د جګړې په ۱۴ شپه له خپل اړوند ټلویزوني چینل الاقصی څخه مطبوعاتي کانفرانس ورکاوه هغه هم په تیرو ۱۳ ورځوکې چې کومې لویې واقعې تیرې شوې وې هغه یې هره یوه په تفصیل سره یاده او کومې کورنۍ چې ډیر غړی یې د اسرائیلي الوتکو په بمباري کې شهیدان شوي ول د هغوی ټولو کورنیو په نوم اخیستو سره یې دهغوي د قربانیو اوسرښندنو یادونه وکړه.

همدا راز اسمعیل هنیه په خپلې لومړنۍ ټلویزوني ویناکې چې په غزه باندې د صهیونیستي یرغلګرو د برید په مناسبت وکړه دهغې فلسطیني پیغلې د غیرت ځانګړې یادونه وکړه چې خپل خاوند ته یې د شهادت د مبارکي په ویلو سره د هغه د جهادي لارې د تعقیبولو ژمنه وکړه ، داهغه فلسطیني پیغله وه چې واده ته یې یوه میاشت پاتې وه ،خو خاوند یې تر واده له مخه د حماس دمجاهدینو په ډله کې د صهیونیستانو په وروستي برید کې شهید شو ، دنومورې شهید ځوان میرمن په ډیر لوړ مورال سره خپل خاوند ته دشهادت مبارکي ورکړه او په خپلو انقلابي خبروکې دهغه دلارې د تعقیب تعهد وکړ.

د حماس د لومړي نمبر چارواکولخوا د خپل ولس د عادي ییښو یادونه او په هغوکې د فلسطیني ولس د سرښندنو یادونه هغه څه دي چې د صهیونیستي یرغلګرو په مقابل کې دهغوی مورال لوړ ساتي اونوریې هم په خپلو چارواکوباندې اعتماد او باور زیاتیږي.

دحماس دمجاهدینو د موفقیت بل راز په دې کې دی چې هغوی د ټولو پوځي ، سیاسي، اداري او مطبوعاتي چارو لپاره داسې مسلکي، سرښندونکي او علمي اشخاص تعین کړي چې هغوی هریو په هرډول شرائطوکې په ډیره فعاله توګه د خپلې دندې سرته رسولو ته اماده او هریو په خپل کاري ساحه کې دحماس له جهادي موقف نه په ډیر مناسب ډول دفاع او دهغه ترجماني کوي، هغوي که څه هم چې دموقعیتونو په لحاظ یوله بل نه لیري او د مسؤلیتونو په لحاظ هم بیلابیلې دندې لري ،خو په خبرو او د موقف په ترجماني کې ټول یونظر ،یوه پریکړه او یوه خبره کوي داسې چې سړی فکر کوي دغه ټول نظریات او پریکړې له یوې مرجع صادرې شوې. هغوی هریو په خپلو خبرو ،خپلو معلوماتو او دقضیې اوموقف په ترجماني ښه لاس بري اوپه ډیر فصاحت ، بلاغت او اعتماد سره هغه تشریح کوي.

داچې د هغوی ټولو د مقاومت او فعالیت ساحه د غزې په داخل کې ده نو هغوی د خپل ولس په افکارو

او نظریاتو دومره کار کړی چې کله هم دیوې موضوع په اړه کوم موقف غوره کوي نو د غزې هر عادي کلیوال، پوهنتوني استاد، ډاکټر، دکاندار، بزګر، ځوان، سپین ږیري، نارینه او ښځې له خولې د هماغه موقف تائید او ملاتړ کیږي او له رسنیو سره عین هماغه توري کاروي کوم چې د دوی د جهادي مشرانو اصطلاح وي، تر دې چې د غزې په مختلفو سیمو کې له نړیوالو نشراتي رسنیو سره کارکوونکي فلسطنیان چې د خبریالانو په توګه کار کوي خپلو اړوندو رسنیو ته د رپوټ او معلوماتو ورکولو پرمهال داسې رپوټ ورکوي لکه د حماس تنظیم د مطبوعاتي دفتر لخوا چې ترتیب شوی وي.

د بیلګې په ډول الجزیره ټلویزوني شبکه په غزه کې دری خبریالان لري چې دوتنه یې نارینه او یوه ښځینه ده.

دغه نارینه خبریالان هریو تامر المسحال او وائل الدحدوح نومیږي هغوی دواړه په داسې قاطعیت او جدیت او دخپل ولس له قضیې څخه د دفاع په لاره کې کار کوي لکه د حماس غورځنګ رسمي ویندویان.

هغوی د صهیونیستي رژیم د سختې بمباري پرمهال د بمباري محل ته ځان رسوي او په هماغه لحظه د هغو ماشومانو، ښځو او ولسي کسانو خبرې او مشاهدات په ژوندۍ بڼه د الجزیره شبکې له لارې خپروي کوم چې په بمباري کې وژل شوي یا ژوبل شوي وي، همدا راز د هبه عکیله په نوم ښځینه خبریاله په ورته ډول د جګړې پرمهال له بمبارشویو کورنیو څخه د زخمي شویو فلسطینیانو ښځو او ماشومانو ژوندي تصویرونه په داسې ډول نشروي چې په هرڅه کې صهیونیست رژیم او دهغوی کړنې سخت محکوموي.

نوموړی خبریالان تر دې کچې د حماس غورځنګ پلویان او دهغوی له کړنو متأثردي چې دغزې په ۱۴ ورځنۍ جګړه کې یې تراوسه پورې دیوه پوځي وژل شوي مجاهد تصویر نه دی خپور کړی، بلکې په خپل لایف رپوټونو کې یوازې د ولسي وګړو په تیره دماشومانو او د ژوبل شویو ښځینه وو په وضعیت خپرولو ترکیز کوي.

په غزه کې د الجزیره شبکې مربوط خبریالان تردې کچې د خپل ولس او حماس د موقف پلوي کوي چې د جولای په ۲۲ د صهیونیستي رژیم د بهرنیو چارو وزیر لیبرمان نوموړې شبکه دحماس په پلوي تورنه او ځواکونویې په غزه کې د الجزیره شبکې دفتر تر برید هوایي برید لاندې ونیو.

د حماس جهادي غورځنګ پورتني امتیازات، د الاقصی له نړیوالې اسلامي قضیې څخه شرعي دفاع، او د دې تنظیم په مشرتابه کې د خبیرو او تجربه لرونکو اشخاصو موجودیت هغه څه دی چې دې غورځنګ ته یې په خپل قوي دښمن بریالیتوب وربښلی او په اوسنۍ روانه جګړه کې یې د هغوي ټول پوځي، دفاعي او استخباراتي ځواک تر پوښتنې لاندې راوستی.

باید په نړیواله کچه جهادي قیادات او تنظیمونه د حماس له تجربونه په استفادې سره دهغوي تعامل په پام کې ولري او خپلې لیکې دهغوي له جهادي تکتیکونو څخه په ګټې اخیستو سره د دښمن په مقابل کې مضبوطې کړي.



# غلامان څنګه خپل بادار ته ننګ کړا!

خبیرعزم

استعمار هم عجیبي لوبي کوي ، کله چې وغواړي یوغلام رامخي ته کړي اوپرخلکویې ومني نودخپلې اجیري میډیاپه زوررته دتبلیغاتوښه میدان ګرم اوتودکړي ،په درنوالقابویې وپړسوي اودنړی سرته یې وخیږوي ،بیایې په ډیرلنډوخت کې بیرته په ځمکه داسې راپرېباسي چې دواړه ژامي یې ورته ماتي ،په بدونوموںواوعیبونویې تورن اوتردې حده پوري یې ذلیل کړي چې حتی دامریکاچارواکي یې دخولحظولپاره خپل حضورته هم نه مني .
کرزی وګوری ، لس کاله دمخه به یې امریکایي اوغربي میډیاپه اصطلاح دنوري وړتیا اوچټکتیا سربیره ان دچپني اوقره قولي صفت هم کاوه اوتصویرونه به یې دنیویارک ټایمز اوواشنګټن پوست اونوروغربي رسنیوپه ړومبیومخوکې په خوراجالبیت خپریدل اودامریکاهرنړیوال پوهنتون به په اعزازي ډول خاصي ډګریاني ،سندونه اومیډالونه ورکول ، خوداسې وخت هم دادی راغی چې دافغانستان دتیر۱۳ کلن امریکایي شکست اورسوایي اودکابل داجیررژیم دماتي ، فساداوپرشاتګ ټوله پړه اوس د همدغه کرزي په سروراچوي اودټولوناخوالو نسبت نوموړي ته کوي ، اوباماچې بګرام ته کله په سفرراشي دملاقات مجال هم نه ورکوي ، صرف یوټلیفون ورته وکړي اوپه زخمونویې مالګې ودوړوي چې دادی (زه ستاهیوادته راغلم نه مې په تګ خبرکړي اونه په بیرته تګ اوپه هغه علاوه مې دخودقیقوکتني موقع هم درنکړه !!)
همداسې یې اشرف غني هم درواخله ، دهغه لپاره هم امریکایي اوغربي میډیاڅه یې چې زده وو یوغریې له بل غرسره وواهه ، تردې چې دنړی ددوهم مفکرلقب یې په سینه وروټومبو !
مابه چې هرڅومره دغه لقب اواشرف غني سره واړاوه اوراواړاوه اوفکربه مې وکړ چې اخیراشرف دکوم داسې فکراوکارنامي له وجي دنړۍ دوهم کس نومول کیږي ، باوروکړي چې هیڅ نتیجه به مې ترلاسه نشوای کړه اوبیاپه افغاني ټولني کې دهغه درول اوسیاسي مشرتوب په اړه خوبه بلکل پرکاله ولاړمه چې افغاني غیرتي ټولنه وګوره اوبیااشرف غني !!
ځکه اشرف غني له تیرو۳۵ کلونوراهیسي چې په افغانستان کې کوم اوربل اودوه میلونه خلک له تیغه تیرشول هغه یې صرف نندارہ کوله اودغرب له عینکویې ورته راکتل ، نه یې دکوم یتیم په سرلاس راکش کړ، نه دکوم شهیددکورنی حال اواحوال یې واخیست اونه یې دخیررسولوکومه فلاحي اوبشري اداره تاسیس کړه اونه یې هم دافغانستان دمظلوم ولس سره دهمدردي په خاطرپه نړیوال میدان کې یوځوځښت رهبري کړ.
په دې سربیره چې اشرف غني ته ددوهم نړیوال مفکرنسبت کیږي ، معلومیږي چې ترشاه یې کوم وحشي سوی اولوی فریب پټ دي ، په دې معنا چې غرب صرف دافغانانوتوجه هغه ته وراړول غواړي، په عام افغاني

ذهنيت کې ورته ديوځوورځولپاره ځای پيداکوي اوخلکوته تمه ورکوي چې اشرف غني به دمفکرد لقب په مرسته وکولای شي دافغانانوبده ورځ په ښه واړوي !!.
کنه اصلي خبره خولکه لمرروښانه ده چې له اشرف غني څخه دامريکايانوستره موخه، له ۱۳ کلن اشغال ورسته په سيمه کې دامريکايانوپراخ اومستقيم حضورته زمينه سازي کوي اودافغانانودملي اوديني غرورپه نوې بڼه ځپل دي اوددغه کارلپاره ، اشرف غني ترنوروښيرومناسب کس اوموثره پروژه بريښي.
زه په دې باورنه يم چې ګوندي داشرف غني سيال ډاکټرعبدالله داشرف په نسبت ښه والی اوکمال لري ، بلکې هغه دافغانانولوی قاتل ، دملي ګټوپه سرلوی معامله ګر اودهيواددملي شتمنيودچوراوچپاول دناولي باندنامتوسرلښکردی ، خواصلي خبره داده چې دامريکايانوله ګامونواوحرکاتوښکاري چې عبدالله هسي يونمايش دی ، امريکايان له کرزي ورسته دکابل په ارګ کې اشرف غني ليدل غواړي ، نوځکه مونږ هم اشرف غني ددې وړبولوچې په اړه يې څه ناڅه سپناوی وکړو اوخپل ولس ته سرله اوس ووايو چې ګوری هيڅکله هم خپلې هيلې اواميدونوپه دغه بهرنی کاغذي ښيري پوري ونه تړي ،هغه دافغانان لپاره مفکراوغني باباندی ، بلکې هغه ته امريکايي ګټې له افغاني منافعوډيرې لوړې اوحق داوليت لري.
همداسې وشول ، کوم معيارچې امريکايانو دکابل رژيم دټاکنولپاره په پام کې نيولی وو چې دديرش ميلوني افغانستان دوګړوله منځه به ۷ ميلونه افغانان چې ددوی په معيارونو برابرول رايي ورکړي اوپه دوهم پړاو کې اشرف غني له خپل سيال څخه دوه ميلونه رايي زياتي يووړي اوپه رښتياهم دغو افغانانو فکرکړی وو چې مفکراشرف غني به دافغانستان دودانوولو اوسوکالی لپاره عجيبي اوغريبي طرحي له ځان سره ولري اووبه کړای شي چې افغانانوته سوله ييزژوندوروبښي اوله کرزي څخه به يې حکومت مستحکم اوپه خاص ډول به افغانان دټلوالي اوتوري مافياله راج څخه وژغوري ، ځکه داشرف غني ترټولوتودشعارداوو چې هيڅ کله به واک دبدماشانو ،قاچاقبرانواوهغوځيروچې ۱۳ کاله يې دافغانانو په شتمنيوتورغوبل جوړکړی واومهم دولتي بنستونه يې په وچ زوريرغمل کړي و واک به نه ورسره شريکه کوي اوهيڅ ډول ايتلاف به نه ورسره کوي.
خوچې کله بدماشانواودټلوالي لوپرانوغوغاجوړه کړه اوخبره يې داوباماواوجان کيري ترغوړ پوري ورسوله اواوباماجان کيري کابل ته راوليږه ، نوبيادمفکردفکر ، تدبيراوجراات اندازه ډيرژرپه ډاګه شوه چې دخپل بادار ګټي اولاړښووني دافغانانودهيلواورايوپه نسبت څومره اهميت اوورته درناوی لري ؟
دجان کيري ، دباو اوحکم فروايي هرچادتلويزونو په سکرينونو وليدله چې مفکر اوسيال يې په څومره خوږو الفاظوصرف دجان کيري خبري ترجمه اونوم يې ورته ملي وحدت ورکړ.
زه دخپلې ليکني پای په فيسبوک کې ديوه افغان ورورپه خبروسره کوم چې ډيرې قيمتي اوحقپالې خبري يې کړي هغه دادي :
ما به پخوا هم ملګرو ته دا خبره کوله چې په دې بلواکه هيواد کې ټاکنې کومه معنی نه لري هسې ځانونه به ستړي کړو او کار به هماغه وشي چې امريکا يې غواړي خو دغوملګرو او دوستانو مې ټينګار کاوو چې نه همدا ټاکنې به دا هيواد له بلواکي نه خلاصوي، خو زما چا نه منله او ښه شوه چې دا بلواکی هيواد او پردي شوي مشران ښه ورته جوت شول اوداټکی هم ورته ښکاره شوچې بادارخپل غلامان څنګه تس نس کوي اواصلي ماهيت يې خلکوته په ډاګه کوي.

# د داعش تېر پرمختګ او دعراق راتلونکی

شهیدزوی

د ۲۰۱۳ کال دمارچ د ۲۰ مې نېټې شپه دعراقیانو لپاره خورا خونړۍ وه کله چې دامریکا طیارو په آباد ؛ ودان او درڼا ګانو ښار بغداد باندې په زرونو درانده بمونه وغورځول ؛ ټولې نړۍ نېغ په نېغه لیدل چې د وسپنې او اور ددې باران په نتیجه کې پور ته شوو تورو لوخړو دبغداد ټوله فضا نیولې وه اوپر ځمکه یې دوژنو او ورانیوویو قیامت صغری و ؛په سبا دا ښار په کنډوالې بدل شوی او هر لور ته ویر او ماتم و.

داعراق ته دامریکا له لورې دراوړل شویو بدبختیو پیل و چې له بده مرغه دبدبختیو دالړۍ نن هم دوام لري او په تېرو ۱۱ کلونو کې پکې کابو یو نیم میلیون عراقیان ووژل شول .

دافسوس ځای دادی چې دلته وژنې ،له خپلو سیمو او کورونو نه بې کوره کېدل زنداني کېدل او بې عفتي یواځې دیرغلګرو په لاس نه بلکې داهرڅه ترډېره حده قدرت او واک ته درسول شویو ګوډاګیانو په لاس رامنځته شویدي نو ځکه دواکمنو پر ضد دلته کر که هم دحد نه زیاته محسوسېدله خو داچې دبهرنیانو په شتون کې دعراق جابره اداره نسبتاً مضبوطه وه نو پر ضد یې قیام ته نه عامو خلکو زړه ښه کولو اونه یې دبریالیتوب تمه کوله .

په ۲۰۱۱ کې دامریکایانو دوتلو نه پس چې دبغداد دادارې په سلوک کې نه یواځې داچې بدلو ن رانغلو بلکې دظلم دائره یې نوره هم پراخه او دبې شرمۍ هغه حد ته ورسېدله چې دمسلمانانو پر ضد دمالکي دوحشي شیعه ملېشواو فوځیانو دظلم او وحشت دسونو پېښنو ویډیو کلیپونه هم خپاره شول نو مظلومو او محرومو مسلمانانودلاسپوځي ادارې په مقابل کې دکر کې ښکاره کولو ؛ دوحشي ملېشو نه دانتقام اخستلو او دظالم دولت دړنګولو لپاره ډګر ته د راوتلو پرېکړه وکړه چې له امله یې په ټول عراق او خصوصاً بغداد کې دبدامنۍ پېښې ورځ تربلې په زیاتېدو شوې او په ۲۰۰۹ کې دامریکایانو دزندان نه ازاد شوې ابوبکر البغدادي چې په ۲۰۱۰ کې په عراق کې مجاهدینو دبیا تنظیم کار پیل کړنو پکې یې ډېر ژر پرمختګ وکړ اوآن دهغه ښارونو خلک یې هم ترشا ودرېدل دکومو سني قبائلو چې په ۲۰۰۶م کې دالقاعدې دعراقي

مشر شیخ ابومصعب الزرقاوي دشهادت نه پس دالقاعدې پرضد قیام کړي و؛ همدا ښارونه دبغدادي تر ولکې لاندې راغلل همدلته یې دمجاهدینو شمېر د ۲۰ زرو نه واوښت او همدلته یې خلافت هم اعلان کړ؛ داسې ښکاري چې عراق دیوې سترې او خورا تباه کونکې کورنۍ جګړې پرلور روان شو خو ترڅنګ یې دامریکالاس ته راوړنې او امیدونه هم له خاورو سره خاورې شول .

هو! پدې کې شک نشته چې دعراق اوسنی حالت دامریکا لپاره سراسر تاواني دی او دامریکا ټوله سرمایه ګزاری په سیند لاهو شوه ؛ نه یواځې دعراق بلکې دټولې سیمې دتېلو؛ غازو او نورو زېرمو دغصبولو او وربانــدې ددائمي قبضې دراوستلو پــه ارادې راغلې امریکا په عراق کې ددې لپاره په ۸ کلن اوږد جنګ کې ځان بوخت وساتلو، په ملیاردونو ډالر یې مصرف او په زرونو عسکر یې قرباني کړل چې دلته به یې اشغال دوام ومومي خو چې پدې هدف کې پــه بشپړ ډول ناکامــه شوه او دعراق نه دتېښتې پر تــه بلــه لار ورپاتې نه شوه نو هیلې یې دمالکي په مشرۍ کې دعراق دلاسپوڅې اداري سره وتړلې او پدې هیله یې دعراق داردو پــه نوم پــه شیعه ملېشو ۲۵ ملیارده ډالر مصرف کړل چې داهدافو ساتنه بـه یې وکړي او عراق به دمجاهدینو لاس تـه له پرېوتو وشغوري ؛ دعراق اداري او فوځ امریکا ته خپل پوره اخلاص ښکاره کړ ؛ مجاهد خو پرېږده په نوم سني یې په ملکي او فوځي ادارو کې له مهمو پوستونو نه لرې وساتل او پر مسلمانانو یې ښه له حده زیات ظلمونه وکړل ؛ همدا نن چې دالیکنه کوم له رسنیو مې واورېدل چې دبشر دحقوقو دڅار نړیوالې ډلې په خپلې یوې وینا پاڼې کې ویلي دي چې یواځې په تېرې جون میاشت کې دعراق شیعه ملېشو او فوځ لږ تر لږه ۲۵۵ سنې بندیان دقضا له چوکاټ پرته اعدام کړیدي .

خو امریکا تــه دشیعه ملېشو ، فـوځ او بغـداد اداري دې وفادارۍ ،اخلاص او دمسلمانانو پر ضد وحشتونو نـه یواځې داچې لاسپوڅې دولت او امریکا تـه یې ګټـه ونـه رسوله بلکې ددوۍ دا وحشتونه ددوۍ پر ضد دمسلمانانو دراپاڅېدو سبب شول او چې مسلمانان راپاڅېدل نو پــه مقابل کې یې همدا منظمــه اردو چې شمېر یې ۵ لکو ته رسېدلو او امریکا پرې ۲۵ ملیارده ډالر مصرف کړي وو دشګو بند وخوت او ور سره دامریکا ټرلې ټول امیدونه له خاورو سره خاورې شول چې پخپله امریکایې جنرالانو هم اعترافونه کړي چې زموږ ټولې لاس ته راوړنې له منځه ولاړې .

داعش (دشام او عراق اسلامي دولت)چې مشري یې ابوبکر البغدادي کوي دعراق ځنې شمالي مهم ښارونه یې دخپلې قبضې لانـدې راوستـي دي ؛او سهمال یې نینوا، بعقوبه ، صلاح الـدین او الانبار ولایتونه په لاس کې دي؛ په دفاعي لحاظ ډېر مهم دتل عفر ښـار هوائی ډګر او دبیجی دتیلو دتصفیې ستر مرکز هم داعش ترخپـل کنتـرول لانـدې راوستـی؛ دشـام پر سرحد پـروت دالولیـد عسکري مرکز او داردن پر سرحد پروت دتریبل پرعسکري مرکز باندې هم ددداعش قبضه راغلې چې دادمالکې دادارې لویه ماتی او دداعش مهم پر مختګ ګڼل کېږي .

پر بغـداد دشـمال لــه لـورې دداعـش حملـې روانـې دي او دراپورونو له مخې اوس دجنوب له لورې هم داعش دحملو تیاري کوي ؛بغداد کې دبي بي سي سره دمرکو پرمهال سیاستوالو او بهرنو دیپلوماتانو ویلي دي چې دداعش دجنګیالو پــه مقابل کې ددولتي قواوو ضعف دبغداد اوسېدونکي سخت ناهیلي کړیدي ؛ دچارو مـاهرین وایي چې داسې ښکاري چې دداعش جنګیـالي ددولتي فوځیـانو پــه پرتله ډېر ښه روزل شوي او نه یواځې داچې جنګي تجربـه یې زیاتـه ده بلکې دفوځ پــه پرتله پــه ښو او مجهزو وسلوهم سمبال دي.

هو! داربښتیاده چې دداعـش جنګیـالي ددولتي ملېشو پــه پرتله ښه روزل شویدي او دجنګ په عملي ډګر کې پراخه تجربـه لري ځکه چې یواځې دانوم نوې دی زیاتره مشران یې پــه عراق کې دیر غلګرو پرضد دپیل شوي جهاد پخواني مجاهدین دي .

بنسټ ایښودونکي یې ابوبکر البغدادي دی ؛ دبغدادي پــه اړه ډېر معلومات مخې تــه ندي راغلي ، معلومات همدومره دي چې هغه دبغداد په شمالي سیمې کې په ۱۹۷۱ کې په یوې عادي کورنۍ کې زېږېدلی دی ، دلوړو زده کړو دترلاسه کولو لپاره دبغداد پوهنتون ته تللی دی او همدلته یې په اسلامي مطالعاتو کې دکتوره اخستې

ده؛ په ۲۰۰۳ کې دامریکایې او نورو بهرنیو یرغلګرو پرضد دپیل شوي جهادي بهیر سره ملګری شو؛ بغدادي هغه مهال دامریکایې فوځونو سره زنداني شوی و کله چې په ۲۰۰۶ کې دعراق دالقاعدې مشر شیخ ابو مصعب الزرقاوي دامریکایې ځواکونو په یوې حملې کې شهید او وریسې په الانبار ولایت کې ځني سني قبائل دالقاعدې پرضد راپورته شول چې له امله یې القاعده ترډېره حده کمزورې شوه؛ په ۲۰۰۹ کې چې بغدادي دامریکایانو دزندان نه را ازاد شو نو دالقاعدې دزړو غړو دراټولولو او بیا منظم کولو لپاره یې هلې ځلې پیل کړې چې ترډېره حده پکې بریالی شو او کله چې په ۲۰۱۰ کې په شام کې دبشارالاسد دوحشي ملېشو پروړاندې مسلمانانو مسلح مقاومت پیل کړ نو بغدادي دموکې نه په استفادې خپل پلویان شام ته واستول او په همدې وخت کې یې خپل تنظیم ته ((الدولة الاسلامیه فی العراق والشام)) نوم کېښود چې داعش یې مخفف دی او انګلیسي کې یې ترجمه په (اسلامک اسټیټ ان عراق اینډ سیریا) کېږي نو ځکه یې مخفف آی.ایس.آی.ایس دی.

بغدادي په هماغه ۲۰۱۰ کې دشام النصر نومې جهادي ډلې ته داتحاد پیغام واستولو خو ددې ډلې مشر ابومحمدالګولاني دبغدادي ترقوماندې لاندې جنګېدو ته تیار نه شو چې له امله یې ددواړو ډلو ترمنځ اختلافات رامنځته شول او ګڼو موارد و کې دا اختلافات په خپلمنځي خونړي جنګونو هم بدل شول چې په نتیجه کې دواړو اړخونو ته ستر ځاني تلفات هم واوښتل ؛دالقاعدې مشر ایمن الظواهري دالبغدادي نه په کلکه وغوښتل چې خپل فعالیت دې ترعراق محدود او شام دې النصر ډلې ته پرېږدي کومه چې القاعدې ته نېږدې ګڼل کېږي خو البغدادي دالظواهري غوښتنه رد کړه او ویې ویل چې داسلامي خلافت قیام دشیخ اسامه ابن لادن ستره هیله وه چې موږ ددې هیلې دپوره کولو لپاره په عملي جهاد بوخت یو.

دمنځني ختیځ دچارو دیو کمزوري طالب په صفت داماته دبغدادي ډېره لویه زیر کتیا اوداعصابو تېزوالی ښکاري چې دالقاعدې داوسني مشر دحکم په ردولو یې دخپل مشر په صفت له هغه انکار و کړ خوځان یې شهید شیخ اسامه ته نېږدې اودهغه دارمانونو پوره کونکی وښود چې همدې شي هغه دعربي نړۍ دځوانو مجاهدینو اتل کړ او الظواهري له پردې شاته ولاړ.

البغدادي دافغانستان طالبان او دافغانستان داسلامي امارت مشر ملامحمد عمر مجاهد په ښو ټکو یاد کړی او ورته یې پېرزوینې هم وړاندې کړېدي خو خبرې یواځې دشیخ اسامه یادوي او عقیدت او احترام هم یواځې هغه ته لري نو ځکه یې دالظواهرې دغوښتنې پروا ونه ساتله او داعش یې په شام کې فعال وساتلو چې له امله یې الظواهري هم دالبغدادې سره دروابطو پرېکون اعلان کړ او ویې ویل چې هغه په تشدد کې له حده تېر شویدی.

البغدادې نه یواځې داچې خپل پلویان یې له شام نه ونه ویستل بلکې وروورو یې په شام کې تنظیم دومره ځواکمن کړ چې د۲۰۱۳ په مارچ میاشت کې یې (( رقه )) ښار داسدي ملېشو ونیولو او تر کنترول لاندې له راوستلو نه پس یې پکې شریعت هم نافذ کړ ؛ داړومبی ځل و چې دیو ولایت مرکزي ښار دمجاهدینو تر کنترول لاندې راغلونو ځکه دا په شام کې دداعش لوي بریالیتوب ګڼل کېدلو.

جهادي موافقې اومخالفې ټولې ډلې دامنې چې البغدادي دجنګ دډګر ستر سالار او کامیاب پلان جوړونکی شخصیت دی؛ او ددښمن دغلطولو او ور ته دفریب ور کولو ډېر ستر استعداد لري؛ دبشارالاسد په ملیشو کې په بلا شهرت لري او ټول دښمنان یې دا منې چې دالبغدادي اعصاب دهغه دجنګیالو دخطرناکو وسلو نه هم زیات خطرناک دي ځکه خو یې دروان کال په جنورۍ کې دمالکي دادارې او سنیانو ترمنځ داختلافاتو او واټن زیاتېدو نه ګټه پورته کړه او دالانبار ولایت مهم ښار فلوجه یې ددولتي قواو نه ونیوله ؛وریسې یې دولایت مرکزي ښار رمادي او دشام او ترکې سرحداتو ته نېږدې سیمې هم ترخپل کنترول لاندې راوستې او چې پدې میاشت کې یې موصل قبضه کړ نو نړۍ یې ولړزوله او امریکا وویل چې دعراق په دوهم مهم ښار دداعش قبضه دټولې سیمې لپاره ستر ګواښ دی.

سره له دې چې دعراق اداري ویلي دي چې مخالفین بغداد نشي نیولای خودعراق اوسېدونکي دسختې وېرې اوور خطايي. ښکار دي اولګیادي خپلو کورونو کې خوراکي مواد زخیره کوي ځکه چې دشمال اولویدیځ له لورې داعش دېر مختګ په حال کې دی .

ویل کېږي چې بغدادي په چاروکې دخپلو نږدې ملګرو سره مشورې کوي خوبواځې هغه څه کوي څه چې یې په خپل فکر کې سم وي ؛ په مزاج کې یې ډېره سختي ده ؛ دمخالفینو په اړه نرمي ښخي نه مني ؛ یواځې وژل یې سمه پرېکړه ګڼي چې ورنه په شام ، عـراق اوبهرنـۍ نړۍ کې دنار اضـومجاهدینواو عـامو مسـلمانانو دنار ضـایت لامـل هـم همـدا دمـزاج زیاتـه سـختي ده .دبغـدادي

د ۲۰ پېړۍ له نیمایي راپه دېخوا د نړۍ ګڼ شمېر اسلامی هېوادونه د غربی واکمنو په څنګ و څټ کې د خپلې بقا زغرې پلټی، کوښټ د عراق پرورانـدې جګړه کې د امریکا لمن ته پرېوت. سعودی عربستان د ایران له وېرې خپل هېواد کې د سرو کفارو شتون ته لبیک وویلې، پاکستان د هند او شوروی له وېرې واشنګټن نه د نجات غوښتنه وکړه. قطر او نور یې هم همداسې درواخله. خو دا ټول بدبخته چې له کومې ورځې ددغه ناولی غربی سیاست په پښو کې پرېوتی تر نن ورځې یې نه په کورنی او نه بهرنی سیاست کې خودمختاری احساس کړې ده او ځینی خو یې لا په کې داسې هم دی چې ورځ تر بلې یې حالت د زوال پر لور پرېووځی.

شعار دی چې دښمن بایدستا په اړه دافکر ونکړي چې تـه ګیني پـه زړه کې رحـم لـرې ؛ تر څودې پر دښمن داسې وېره نه وي پرېوتې چې ستا دنوم پر اخستلوپر هغه رپېدا راشي ترهغې دې بریـالیتوب نشي په برخه کېدای .

کـه وکتـل شـي داعـش سمدسـتي ددښـمن پـه زړونـو کې همداسې خوف غورځولی دی ځکه خودمالکي فوځیانو په شمال کې دداعش درار سېدونه وړاندې دد تالاشۍ پاټکونه ، پوستې اوټول عسکري مر کزونه خالي کړي اوپه تېښته ترې تښتېدلي وو .

وایـې چې بغـدادي تـل دراتلونکي پـه بـاره کې فکـر کـوي اوپر دښمن دحملې لپاره داسې وخت اوحالت انتخابوي چې په اړه یې هیڅوک فکرنه کوي ؛ ټایم جریدې ته تېر کال دحزب الله یوقوماندان ویلي وچې بغدادي ډېر خطرناک دښمن دی ؛ له خپلو رازونو هیڅوک نه خبروي چې همدادهغه دبریالیتوب اساسي نکته ده .

دداعش دخلافت ، دبغدادي دوجود اومشرۍ دراتلونکي پـه باره کې به سمدستي څه ویل ګران وي خواوس داعش دومره قوي دی چې القاعده یو وخت هم دومره نه وه قوي .

دبغـدادي دښمنان هم مني چې بغدادي دمخکې تللوډېره لوړه حوصله لري ؛ کینت کنګ نومي امریکایې فوځي افسروایې کلـه چې بغـدادي پـه ۲۰۰۹م کـې آزادېـدلونو دنیویـار ک سـره دتړ اولرونکي یوعسکرپه لیدلو یې وویل :بیابه سره نیویارک وینو؛ کله چې بغدادي دلیـدر پـه صفت رامخې تـه اونړیوال شهرت یې وموند نو امریکایې فوځیان حیران شول چې داجمله یوه لویه اشاره اودبغـدادي دخـود اعتمـادۍ لویـه نښـه وه چـې هغـه مهـال پـرې امریکایې افسر نه وپوه شوی .

عـراق اوس بې لـه شکه چې دشیعه اوسني پـه کورني جنګ اخته شویدی چې دعراقي ملت لپاره داحالت هم لـه سترو تـاوانونو ډک دی خو راتلونکی یې ډېر خطرناک ښکاري ؛ که داعش دمالکي دشیعه ملېشوپه مقابل کې شاتګ ته اړشو نوددې هېواد سنیان بـه دشیعه ملېشودبې ساري ظلمونو ښکار شي اوکه دداعـش پـه مقابل کـې دبغـداد اداره پـه کلـي ډول مـاتې تـه نېږدې کېـږي نوبیابـه دداعـش دپر مختـګ دمخنیـوي پـه نوم ایـران اوحـزب الله مداخلـه کوي چې دابه په ټولې نړۍ کې دشیعه ګـانو اوسنیانو تـرمنځ هغـه اور ته لمن وهل وي چې خدای مکړه درامنځته کېدوپه صورت کې به یې ډېر ستر قتل عام رامنځته اودکفري نړۍ ارمانونه بـه پوره شي نوځکه باید ایران اوحزب الله دنورې اسلامي نړۍ سره یوځای دستونزې دریښتوني حل لپاره په پوره اخلاص عملي ګامونه پورته کړي اودعاجلې پرېکړې اوبې احتیاطۍ نه کاروانخلي .

# اسلامي هیوادو کې

ځوارلسمه برخه

## داسلامیت او مغربیت ترمنځ کشمکش!

### هندوستان کې دمشرقیت او مغربیت...

### علامه اقبال اوپه مغربي تهذیب دهغه تنقید

لیکوال: داسلامي نړۍ مفکر عالم مولاناسید ابوالحسن علی "ندوي" رح - ژباړه: ابوظهیر

داچې نوموړي (علامه محمد اقبال) دغربي تهذیب دجوړښت عنصرونه اودهغه دننه شته کمزورتیاوي په پوره توګه څېړلې اوپه هغه کې دپټې فساد تر هغو ژورو یې نظر رسولی و، کوم چې دهغه مادي اړخ له مذهبي، اخلاقي او روحاني، اقدارونه دلویدیځ دبغاوت په موخه دهغه په خمیره کې اغړلی و، نوموړی دقلب اونظر دي فسادته کوم چې دغربي تهذیب خصوصیت دی، د روحي چټلۍ نوم اخلي: وایي:

فساد قلب نظر فرنګ تهذیب
که روح اس مدنیت ره سکي نه عفیف
ره نه روح میی پاکیزه ګی تو هی ناپید
ضمیر پاک وخیال بلند و ذوق لطیف.
(ضرب کلیم ۶۹مخ)

دغربی تهذیب پایله دزړه بې نوري اودژوند بې خوندي ده، کومه چې پرې ختلې، ورته د ماشیني اومصنوعي رنګ په ښلو یې د روحاني اقدارو په لور غځیدلې لارې قطع کړې او لویدیځوال یې دخدای ﷻ له رحمت نه لرې بیولي هغه (علامه اقبال) وایي:

یه عیش فراوان، یه حکومت، یه تجارت
دل سینه بی نورمی محروم تسلّی
تاریک هی افرنګ مشینو کی دهوي سی
یه وادئ ایمن نهی شایان تجلی
(ضرب کلیم ۱۴۱مخ)

ځای، په ځای دغربي تهذیب دبې دینۍ بنسټ او دهغه په خمیره کې یې دلادینیت یادونه کړې، یعنې دعلامه په نظر

غربي تهذيب له دين او اخلاقو نه بيزار ،له ابراهيمي روح نه متنفر او د باطلو معبودانو د نوي عبادت خانې معماردی "مثنوي "پس چه باید کرد" کې وايي:

لیکن ازتهذیب لادینی گریز! زان که اوبا اهلِ حق دارد ستیز
فتنه ها این فتنه پرواز آورد: لات و عزی درحرم باز آورد
از فسونش دیده دل نا بصیر روح ازبی آبئ او تشنه میر
لذتِ بی تابی ازدل می برد! بلکه دل دین پیکرِ گل می برد
کهنه دزدی غارتِ اوبرملا ست لاله می نالد که داغِ من کجاست

علامه وړاندې وايي دغربي تهذيب شيوه غارت ګرې او ادم درې ده ، مشغله او هدف يې سوداګري ده ، هغه وخت به نړۍ ته امن ،سکون ،او دبې غرضه محبت او خلوص دولت په برخه شي، چې کله ددې تهذيب ريښې وويستل شي، وايي:

شیوه تهذیب نو آدم دری است پرده آدم دری سوداگری است
این بُنوک این فکرِ چالاکِ یهود نورِ حق ازسینه آدم ربود!
تانه وبالانه گرددّ این نظام دانش وتهذیب ودین سودائی خام

(پس چا باید کرد ۳۰مخ)

داتهذيب اګر که دځان او تاريخ له پلوه ځوان اونوخيز دى، خو دخپلو کمزوريو او اساسي تيروتنو په وجه دنزعې په حالت کې دى او دبشپړ زوال په ځنډو ولاړدى، په دې تهذيب کې شاطرو يهودانو ته چې کوم واک منل شوى ،هغه ته په کتو سره لرې نده چې د عيسويانو د سپېڅلې ترکې وارثان يهود شي:

هی نزع کی حالت می یه تهذیب جوان مرگ
شاید هو کلیسا کی یهودی متولی

(بالجبريل ۱۴۱مخ)

خو دمرګ په بستره دطبعي مرګ په ځای ټول شته اثار او قراين په دې شاهد دي چې دغه تهذيب به دځان وژنې مرتکب ګرزي او پخپل خنجر به خپله غاړه پرېکوي، دخپل ژوند کېسه به پخپله پای ته رسوي.علامه وايي:

تمهاری تهذیب اپنی خنجر سی آپ هی خود کشي کریگی
جو شاخ نازک په آشیانه بنی گا ناپائدار هو گا

(بال جبريل ۱۷۶مخ)

علامه وايي :غربي تهذيب چې ددين او اخلاقو د ثارنې او دخدای (ﷻ) نه له ډار پرته دکايناتو دتسخيرولو کوم نازک سفر پيل کړی و، په هغه کې برياوو پخپله ددغه تهذيب وجود اوبقاله ګواښ سره مخ کړيده، او انديښنه شته چې هغه پخپل اور کې وسيزي اوخاورې ايرې شي :

وه فکر گستاخ جسن نی عریان کیاهی فطرت طاقتونکو
اسی کی بی تاب بجلیون سی خطر می هی اس کا آشیانه

دسود اود مکروفن دنيا!دکومې معمار چې فرنګ دی، نوره په نړيدو ده اوپه ځای يې يوه بله نړۍ ودانيږي، وايي:

جهان نو هورهاهی پیدا وه عَالمِ پیر مر رهاهی
جسی فرنگی مقامرونی بنا دیاهی قمارخانه

(بال جبريل ۱۷۶)

نوموړی وړاندې وايي: دا تهذيب چې دعلم په رڼا روڼ دی او دژوند انه له حرارته سړغی شيندې، دطبعياتو او صنايعو په دايره کې وخت په وخت خپل کمالات ښکاره کوي، خو په اصل کې له انقلابي ايجاد او اجتهادي قوت نه محروم دی، هلته دعقل ګټه دزړه زيان ده دهغه رهبران خپله دتقليد بنده ګان او د يوه توري فقيران دي، له هغه مرکز ،مستانه نارې ، قلندري هوډ او پيغمبرانه جرات نه محروم دي.وايي:

یادایا مى که بودم درخمستانِ فرنگ
جامِ او روشن تر ازآئینه اسکندر است
چشمِ مستِ می فروشش باده را پروردگار
باده خواران رانگاه ساقی اش پیغمبر است

جلوه او بي کليم وشعله او بی خليل
عقلِ نا پروا متاعِ عشق را غارت گراست
درهوايش گرمئ يک آه بی تابانه نيست
رنداين ميخانه رايک لغزش مستانه نيست
(پيام مشرق ۲۴۸مخ)

بل ځای دغربي تهذيب دروښانه مخ او د تياره ژړه انځور داسې کاږي:

يورپ ميں بهت روشنئ علم وهنر هی
حق يه هی بی چشمه حيوان هی يه ظلمات
رعنائی تعمير ميں رونق ميں صفا ميں
گرجون سی کهيں برهکی هي بنکون کی عمارات
ظاهر ميں تجارت حقيقت ميں جوا هی
سود ايک کا لاکهو کی لي مرگ مفاجات
يه علم يه حکمت يه تدبر يه حکومت
پيتي هي لهو ديتي هي تعليم مساوات
بيکاری وعريانی وميخوري وافلاس
کيا کم هي فرنگي مدنيت کي فتوحات
وقوم که فيضان سماوي سي هو محروم
حد اس کي کمالات کي هي برق وبخارات

دمغربي تمدن او دهغه په بنسټونو او دهغه دفکر په طرز داتنقيد اوڅېړنه دنوموړي په هغو علمي ويناوو (خطباتو) کې چې په مدراس کې ورکړې وي اوبيا هغه

of religious – thought in islam
RECONSTRUCTIN

په نوم خپرې شوي په ښه ژورتيا سره راغلی دی، ولې چې دعلم اوفلسفې ژبه دشعر اوادب ژبې په مقابل کې دعلمي اندونو او دکره تنقيد زيات صلاحيت لري، هغه دغرب دمادي تهذيب جوړښت اومزاج په اوسني انسان باندې (کوم چې دهغه نماينده اوعلمبردار دی) هم داشان له هغو مسايلو اوستونزو سره مخ دی دتبصرې لړ کې ليکي:

داوسني زماني تنقيدي فلسفو او په طبعي علومو کې اختصاص چې انسان دکوم څه سره مخ کړی دی، هغه تر ډېره د ويلو ندی، فطري فلسفې له شک پرته ورته دا صلاحيت بښلی دی چې فطري قوې تسخير کړي، خوپه راتلونکي کې تري دايمان اواواعتماد دولت وترورې. (تشکيل جديد الهيات اسلاميه ۲۸۷ - ۲۸۸مخ)

اوس محال چې دذهني زيار ايستلو په وجه کوم نتايج راوتلي دهغو تراثر لاندې دانسان روح وژل شوی، يعنې هغه له خپل ضمير اوباطن نه لاسونه وينځلي، دخيالاتو او اندونو له جهته چې ور وکتل شي، دهغه وجود دځان سره متصادم دی، له سياسي پلوه که نظر وغورځول شي، نو وکړي دوکړو سره لاس اوګريوان دي، خو په هغه کې دومره توان نشته چې خپل ناروا انانيت، نه تم کيدونکي لوږه کابو کاندي، داهغه خبرې دي چې دهغو لاندې ژوند دلوړو مراتبو لپاره دهغه کوښښونه تدريجاً پای ته رسي، بلکې داويل پکار دي چې هغه په حقيقت کې له ژونده ستړی دی، دهغه نظر په حقايقو خښ دی، يعنې دحواسو هغه سرچينه کومه چې دهغه تر ستر ګو لاندې ده تړل شوې، له دې وجې يې اړيکه دخپل وجود له عمق سره شليدلې، بيا هغسي څنګه چې "هکسلي" (HUXLEY) سره اندېښنه وه اوتاسف به يې کاوچې دماديا تو دې ځلونې په پوره توګه دهغه لاسونه اوپښې شلې کړې، (تشکيل جديد...۲۸۹ -۲۹۰مخ)

دنن زماني دلادينه اشتراکيت موخه بې له شکه نسبتاً زياته پراخه ده، دهغه دجوش اوجذبې هم هغه حال دی کومه چې ديوه نوي مذهب وي، ليکن داچې دهغه اساس د"هيګل" دمخالف نظر په منونکو دی، له دې وجې هغه دداسې څه سره لاس اوګريوان دی کوم چې هغه ته دژوند او ځواک سرچينه کيدای شي (تشکيل جديد... ۲۹۱ -۲۹۲)

علامه اقبال غربي ټولنه يوه داسې نمونه وړاندې کړې چې دهغې ترشاه يواځې وحشيانه رسه کشيده، هغه ورته يو داسې

تهذیب وایي. کوم چې ددیني اقدارو اوسیاسي اقدارو دکشمکش له وجې خپل روحاني وحدت له لاسه ورکړی.

هغه دیو داسي تجربه کار مبصر په حیث پانګوال او اشتراکیت دمادیت ونې دوه ښاخونه او دیوه کاله دوه وګړي ګڼې، چې یو مشرقي دی، اوبل مغربي، خو مادي فکر او دبشریت په اړه د دواړو محدود نظر یودی، په یوفکري اوتخیلاتي یون کې چې هغه پکې دسید جمال الدین افغاني سره ویني دهغه له خولې داتبصره نقلوي:

زنـــدګی ایـــن را خـــروج أن را اخـــراج
درمیـــان ایـــن دوســـنګ آدم زجـــاج
ایـــن بـــه علـــم ودیـــن وفـــن آرد شکســـت
آن بـــرد جـــان را ازتـــن نـــان رازدوســـت
غـــرق دیـــدم هـــردور اورآب وګـــل
هـــردورا تـــن روشـــن تاریـــک دل
زنـــدګانی ســـوختن باســـاختن
درګلـــی تخـــم دلـــی انـــداختن
(جاوید نامه ۷۰مخ)

غریبـــان ګـــم کـــرده انـــد افـــلاک را
درشـــکم جوینـــد جـــان پـــاک را
رنـــګ وبـــوازتن نګیـــرد جـــان پـــاک
جزبـــه تـــن کـــاری نـــدارد اشـــتراک
دیـــن آن پیغمبـــر حـــق ناشـــناس
برمُســـاوات شـــکم وارد اســـاس
تـــا اخـــوت را مقـــام انـــدردل اســـت
بـــیخ او دردل نـــه درآب وګـــل اســـت
(جاوید نامه ٦۹مخ)

**مغربي تهذیب او اسلامي هیوادونه:**

دمحمد اقبال اند دا وچې مغربي تهذیب دخپل ځان رڼا کولو ګروپ دی، اسلامي هېوادوته یې هیڅ ګټه نشته او نه پکې ددویم وار ژوند پیدا کولو ورتیا شته، وایي:

نظـــر آتـــی نهـــی بـــي پـــرده حقـــایق انکـــو
انکـــه جـــن کـــی هـــوئي محکـــومي وتقلیـــدي ســـی کـــور
زنـــده کرســـکتي ایـــران وعـــرب کـــو کیـــونکر
یـــه فرنګـــي مـــدنیت کـــي جـــوهي خـــود لـــب ګـــور
(ضرب کلیم ٦٨مخ)

مغرب چې مشرق ته داحسان کومه بدله ورکړې دهغې په یادولو سره وایي:

فرنګیـــون کـــو عطـــا خـــاک ســـوریانی کیـــا
نبّـــی عفـــت وغـــم خـــواری وکـــم آزاری
(دنبي نه عیسي علیه السلام مراد دی)
صـــله فرنـــګ ســـی ایـــا هـــی ســـوریا کیلـــي
مـــی وقمـــاروهجوم زنانـــان بـــازاري
(ضرب کلیم ۱٥۰)

**په ختیځ کې دجدیدیت په علمبردارانو باندي تنقید:**

هغه په اسلامي هېوادو کې دجدیدیت خوځښت یا په پل سپیناوي دمغربیت په علمبردارانو بدګمان دی او اندیښمن دی چې دتجدید دعوت چېرې دفرنګي دتقلید بهانه نه وي .... وایي:

لـــیکن مجهـــی ډرهـــی کـــه یـــه آوازه تجدیـــد
مشـــرق مـــی هـــی تقلیـــد فرنګـــي کابهانـــه
(ضرب کلیم ۱۷۰)

دجدیدیت دعلمبردارانو کمزورۍ او ناپوهۍ ته په اشاره وایي:

مـــی هـــو نومیـــد، تیـــری ســـاقیان ســـامری فـــن ســـی
کـــه بـــزم خـــاوران مـــي لـــی کـــی آئـــی ســـاتګین خـــالی
نئـــی بجلـــی کهـــان ان بـــادلون کـــی جیـــب ودامـــن مـــی
پرانـــي بجلیـــون ســـي بهـــی جـــن کـــې آســـتین خـــالي
(ضرب کلیم ٦۹)

دنورو تهذیب او افکارغندي وایي: دهر هغه قوم لپاره دعار اوشرم خبره ده خو دهغه قوم لپاره نه ښونکي ګڼاده چې دقومونو قیادت او دنړیوال انقلاب لپاره پیدا دي.... وایي:

**په افغانستان کې له دې سره سره چې په تیرو کلونو کې نظام او ځایي اداري شخصي شوي دي اوس اوس کوښښ کوي چې د دوی په لاس جوړ شوی قانون هم کرار کرار شخصي شي ، دا خبره مې ځکه وکړه چې پرون به مو د عبدالله له لوري د خبرو دراویستو خبره په رسنیو کې اوریدلې وي.**

**د ټلیفون خبرې په اساسي قانون کې خوندي دي، خو پرون عبدالله وکولای شوای دا خبرې راوباسي او بیا یې ټول عالم ته وروښيي، د عبدالله دا کړنه ددې ښودنه کوي، چې شته اردو، پولیسو، امنیت او نور ټول یوازې د یوې ادارې په چوپړ کې دي.**

**له معمول سره سم په نړۍ کې قانوني نظام او قانون جوړونه د دې لپاره وي څو وکولای شي د یوې ټولنې د اشخاصو د غوښتنو د تصادم مخه ونیسي او له دې ډول تقابلونو څخه د مخنیوي او ډاډ په ډول را ښکاره شي. نو قانون ځکه ډیر ارزښت لرونکی رول لري چې په هغه کې د یوې ټولنې ټولو مصالحو ته پام کیږي او په ترڅ کې یې د مصالح کلي، ځینې شته او نه شته توکي د قانوني مواردو په توګه په پام کې نیول کیږي او خلک هم پوهیږي چې دا باید او نباید په عملي کړي او د ورځینو کارونو په ترڅ کې ورته پام وکړي.**

جو عالِم ایجاد مي هی صاحب ایجاد
هر دور مي کرتا هي طواف اس کا زمانه
تقلید سي ناکاره نکر اپنی خودي کو
کر اس کي حفاظت که یه ګوهر یګانه
اس قوم کو تجدید کی پیغام مبارک
هي جس کي تصور مي فقط بزمِ شبانه
لیکن مجهي ډرهی که یه آوازه تجدید
مشرق مي هي تقلید فرنګي کا بهانه
(ضرب کلیم ۱۷۰مخ)

دمشرق اسلامي قومونه ملامتوي دچا منصب چې قیادت اورهبري ده لیکن هغه دښکته درجې شاګردۍ او نقالۍ کردار اداء کوي ... غالباً دتر کانو ته اشاره کوي او وایي:

ګرسکتی تهی جو اپنی زمانه کي امامت
وه کهنه دماغ اپنی زمانه کي هی پیرو
(بال جبریل ۱۷۰)

په جاوید نامه کې دپرنس سعید حلیم پاشا په ژبه په ترکیه کې دکمالي اصلاح وانقلاب دسطحیت او دهغه دداعی اوزعیم کمال (تاترک) دفکرې قدامت پالنې او داروپا دبې روحه تهذیب نقالي غندي

مصطفی کو ازتجّدد می سرود    ګفت نقشِ کهنه رابآید زدود
نونګر در کعبه را رختِ حیات    ګر ازافرنګ آیدش لات ومنات
ترک را آهنګِ نودرچنګ نیست    تازه اش جز کهنه افرنګ نیست
سینه اورا دمی دیګر نبود    درضمیرش عالمی دیګر نبود
لاجرم با عالم موجود ساخت    مثلِ موم ازسوزاین عالم ګداخت
(جاویدنامه ۷۲مخ)

**په اسلامي تهذیب او دهغه په ژوند یقین:**

نومورې داسلامي تهذیب او اسلامي شریعت په لازوال قوت اود نوې نړۍ او نوې ټولنې په تشکیل او تعمیر په هغو ستر و امکاناتو بشپړ یقین و ، دټول اسلامي ګوندونو دګډ کانفرانس دمشر په تو ګه یې په کال ۱۹۳۲ز کې خپله وینا کې مسلمانانو ته په خطاب کې وویل:

دکوم دین عالمبرداران چې تاسو یئ! هغه دفرد قدروقیمت مني اودهغه هغسي تربیت کوي چې خپل هر څه دخدای خوښې اوبندګانو په ښیګڼه ولګوي، ددې قیم دین مضمرات لا ختم ندي، دا دین اوس هم یوه نوې نړۍ پیدا کولی شي، چې پکې له غریب او امیر دواړونه خراج واخلي ،هغه به دانسانانو دمعدو په مساوات نه بلکې دروحونو په مساوات جوړه وي: نوربیا

# دغزني ولايت

## مركه

## له جهادي مسؤل مولوي محمد قاسم صميم سره

مركه كوونكې، خبيراحمدمجاهد

غزني ولايت دافغانستان دمركزي ولاياتو له جملې څخه دی ، چې ختيځ ته يې لوګر او ميدان وردګ ولايتونه ، شمال ته يې باميان او دايكندي لويديځ ته يې زابل او روزګان او جنوبي اړخ ته يې پكتيا او پكتيكا ولايتونه پراته دي .

دغزني ولايت مساحت ۲۲۹۱۵ مربع كيلومتره او نفوس يې دوروستيو شميرو له مخې تقريبا نهه لكه تنه دی ، غزني چې دافغانستان له ګڼ نفوسه سيمو څخه ده په تاريخي لحاظ هم دافغانستان يوه مشهوره سيمه ده ، ددې ولايت مركز ( غزني ښار ) دی چې داسلامي تاريخ په منځنيو پيړيو كې دغزنويانو دسترې امپراطورۍ مركز وو ، غزني ولايت په مركزي ښار سربيره ۱۷ ولسوالۍ لري چې نومونه يې په لاندې توګه دي .

اندړ ، دهيک ، زنه خان ، رشيدان ، خواجه عمري ، خوګياڼي ، واغز ، جاغوري ، ناور ، مالستان ، اجرستان ، ګيرو ، قره باغ ، آب بند ، مقر ، ګيلان او ناوه .

غزني ولايت په مركزي افغانستان كې د جهاد له ګرمو سنګرونو څخه شميرل كيږي ، په دې ولايت كې د امريكايي يرغل د پيل له نيټې بيا تر اوسه پورې جهادي خوځښت پر ته له ځنډ او

خنډه روان دی چې له بركته يې د ولايت زياتره سيمې له خارجي يرغلګرو تصفيه شوي دي او دپاتې سيمو د ازادۍ لپاره جهادي حركت لاهم جريان لري، دلته مو دغزني ولايت لپاره د اسلامي امارت دعمومي جهادي مسؤل مولوي محمد قاسم صميم سره مركه كړې چې ستاسو توجه ورته راجلبوو.

پوښتنه

محترم والي صاحب ! داچې تاسې په دې ورستيو كې دغزني ولايت جهادي جريان اوجبهې له نيږدې كتلي ، كه دنوموړي ولايت په عمومي جهادي وضعيت باندې رڼا واچوی چې هلته دخيبر عمليا تو پيل اوجريان څنګه روان دی اومجاهدين په څومره ځمكه تسلط لري؟

ځواب

الحمدلله دغزني ولايت جهادي وضعيت ډېراو اطمنان وړ دی د ولايت پـه ځوار لسوولسـواليو کې داسـلامي امـارت دقهر مانو مجاهدينو ښه فعال نظامي تشکيلات وجودلري مجاهدين په اتحاداواتفاق په ښه مورال په ټولو ساحو کې پـه خپلو نظامي کارونو بوخت دي دولايت نظامي جهادي وضعيت پـه ځو جملو کې په لاندې ډول تشريح کولای شو

الف - ناوه، رشيدان، زنخان دری واړه مفتوحه ولسوالۍ دي ،ددښمن هيڅ عسکر، پوځيان يا اربکيان هلته شتون نلري.

ب - ګيرو، خوګياڼي اوواغـز ولسوالۍ دمجاهـدينو تر دايمي محاصرې لاندې دي دښمن ددغوولسواليواکمالات دلويې قوې يا دهواله لارې کوي ،ددښمن عسکر دولسوالي لـه انګړ نـه بهرنشي راوتـلای ،دخوګياڼوولسـوالی دمقـام پـه دوه سـوه متـرۍ کې مجاهدينو سنګرونه نيولي دګيروولسوالۍ په پنځه سوه مترۍ کې ديني په نوم کلی موقعيت لري دغه کلی دمجاهدينوقوی مرکزدی ،دواغـظ ولسـوالۍ پـه يو کيلـومتري کی داخندخيلوپـه نـوم کلی موقعيت لري پـه دغـه کلي کې مجاهدين اوسيږي چې لـه همدغه کلي نه مجاهدين پر دښمن حملې کوي.

ج - دګيلان، آب بند، قرباغ ،اندړو او دهيک ولسواليواويا سـلنه دمجاهـدينو تر کنترول لانـدی دي پـاتې ديـرش پـه سـلو کې سيمه کې دښـمن اوسـيږي چې لاهـم پـه ارام سـا نشـي اخستلی مجاهدين دنظامي پلان لـه مخې ددښمن پـه ميشت ځايونو کاري بريدونه کوي.

د - دغزني مرکز،مقر اوخواجـه عمـري ولسواليو کې نسبت نورو ولسواليو ته ددښمن حضور شته ده مګر مجاهـدين الحمـدلله دقـوی ارادې اومتـين عـزم لـه مخـې ددښـمن پـه قرار ګاؤاوپوستو منظمې او کاميابې حملې کوي چې پـه هـره حملـه کي دښمن لـه ځاني اومالي زيـان سره مخ شوی، خصوصـادغزني پـه مرکز کې دښمن دمجاهدينو دځانګړو چريکي ګروپونو دعمليـاتو او بريدونو له امله له سختي وار خطايي او پريشاني سره مخ دی.

دخيبر عمليـات پـه غزني کې پـه ټـاکلي نيټـه دالله اکبرپـه سپڅلې نعره سره پـه منظم ډول سره پيـل شول چې پـه جريـان کې يې تر اوسه ښې لاسته راوړنې ترلاسه شوي دي، پـه دې لړ کې دټولو بريدونو او لاسته راوړنو ذکر خو شايد ددې مرکې تـر حوصلې لوړه خبره وي نوځکه دنمونې په شکل ځو عمليـاتو ته لنډه اشاره کوو.

دګيلان په ولسوالۍ کې ددښمن لويه قوه دمجاهدينولخوالـه لس ورځني شديدمقاومت وروسته لـه شرمونکي شکست سره مخ اوتيښـتې لاره يې ونيولـه دښـمن ونـه توانيـده چې دمجاهدينو پـه سيمه کې ورانډې په مخ ولاړ شي.

داب بند په ولسوالۍ کې ديوه تـاکتيکي بريدپه نتيجه کې داربکيانو بـدنام قومنـدان شـادنام ژوندلـه لاسـه ورکـړ دواغـظ ولسوالۍ دامنيه قومندان دځلورو ملګرو په ګډون اودخواجـه عمري امنيـه قومنـدان پـه جـلا جلا حملو کې ووژل شـول ،پـه قرباغ کی داربکيانو دوه پوستې ،پـه خوګياڼو کې يوه پوسته چی نوې يې جوړه کړی وه مکملې فتحـه شـوې، دانـدړو ولسوالۍ دعليزو کلي کې دوحشي امريکايانوچاپـه دمجاهدينولـه شـديدمقاومت سـره مـخ شـوله دسـيمي دعينـی شـاهدانو دوينالـه مخـي دغـه چاپـه دلسګونوامريکايي او کورنيوغلاموعسکرو پـه مرګ ژوبلـه پـای تـه ورسيده چې ددغومختلفوعملياتوپه ترڅ کې ددښمن پـه لسګونه عسکر مړه اوژبل شول دوه ميلـه ثقيلان ،يوميـل درازکوف، دری ميلـه راکټ، شپږميله کلاشنکوف مجاهدينوپـه غنيمـت ونيـول دغسې دغزني په مرکز اونورو ولسواليو کې هم خوراهم کارونه ترسـره شـوي دي او دخيبر عمليـات تر اوسـه ښـه خوندوراولـه فتوحاتوسره مل په مخ روان دي.

پوښتنه

ښاغلی والي صاحب ، ددوهم پړاو په انتخاباتي ډرامې که لږ توضيحات راکړې ، چې دغزني ولايـت پـه مربوطـاتو کې دجوز ۲۴ ورځ څه ډول تيـره شوه اومجاهدينودنوموړي شيطاني ډرامـې دشـنډولوپه برخـه کـې څـومره چمتـوالی درلـود اودعملياتو کچه يې څنګه وه؟

ځواب

ددوهم پړاو انتخابات دغزني په ټولوولسوالیو کې بې نتیجې پای ته ورسیدل په اتوولسوالیو کی له سره دانتخاباتومر کزونه موجودنه وو په پنځوولسوالیو کې دښمن دانتخاباتولپاره یویومر کزجوړ کړی وو، دانتخاباتوصندوقان دولسوالۍ په داخل کې ایښودل شوي وودسهارله اووبجودمازدیګر ترپنځوپوری مجاهدینوپه ټولوانتخاباتي مراکزومنظم کاري بریدونه وکړل دمجاهدینودهدایت په اساس عام خلک هم له خپلو کورونو راوونه وتل ،نوعام اولس له سره په انتخاباتو کی برخه نده اخستې دښارپه څلوروانتخاباتي مراکزوکې دماین تاکتیکي چاودنې وشوې له همدې امله په ښار کي هم خلکودپام وړ ګډون ونکړ نومجاهدینوددغي شیطاني ډرامې د شنډولو لپاره پوره چمتوالی درلودچې په نتیجه کي یې انتخابات شنډاوله ناکامي سره مخ شول .

پوښتنه

دغزني په ولایت کې داربکیانودشرارت اوشتون خبرونه کله ناکله ور کول کیږي ، که په دې برخه کې معلومات راکړی چې مجاهدینو دهغوی دجړو دویستلوپه برخه کې څومره کار کړی اوپه خاص ډول دعام ولس مرسته داربکیانوپه مقابل کې له مجاهدینوسره تر کومه بریده ده ؟

ځواب

په رښتیاهم کله ناکله په مطبوعاتو کی دغزني په لایت کي داربکیانودشرارت اوشتون خبرور کول کیږي خوداسي هم نده لکه څنګه چي په مطبوعاتو کي خپریږي دمقر ،قرباغ شلګراودهیک ولسوالیوپه ځینوسیمو کې دغه شریر وسلوال څه ناڅه شتون لري مګر ددوی دنفوذمخه نیول شوي دعام اولس مرسته له مجاهدینوسره بی کچي زیاته ده دشلګرپه دریو کي دوه برخي دمجاهدینو تر کنترول لاندي دي ددښمن دتګ راتګ لاري په

مابینونوپوښل شوي داربکیانوپه پوستومجاهدین دنظامي پلان له مخي مؤثري حملې کوي داولسی خلکوپه مرسته مجاهدین دپوستوپه منځ کی چریکي عملیات کوي .

دقرباغ ولسوالي دکابل - قندهارسر ک په دوو برخو ویشلې تیر کال له سر ک نه لوړه سیمه ټوله ددښمن په لاس کې وه اوله سر ک نه لاندې سیمه ترنیمایي زیاته برخه ددښمن سره وه، سږ کال الحمدلله له سر که لاندی سیمه ټوله دمجاهدینوپه ولکه کې ده مجاهدینودیوه تاکتیک له مخي له سر ک نه پور ته سیمي کي داربکیانودوه مهمي پوستي ونیولې چې ددغوپوستوپه نیولوسره ډیر کلي دمجاهدینو تر کنترول لاندې راغلل، ددهیک ولسوالۍ په څلورو کې دری حصې دمجاهدینو تر کنترول لاندې دي، یوه برخه چې درباط، لغوات ، تاسنګ کلي یکي راځي داربکیانوله شره ندی خوندی پوره یوه میاشت کیږي چی رباط دمجاهدینولخوامحاصره دی دلغوات تاسنګ په کلیو کې دمجاهدینود کامیابه چریکی عملیاتوپه نتیجه کي داربکیانو دمهمو قومندان عبدالرحمن او جان ولي په ګډون ګڼ اربکیان له منځه تللي دګیلان اوآبندولسوالیولخواځخه دمقرپه ولسوالی دوامداره کاري حملې کیږي.

نودغزنی په ولایت کی داربکیانودشرارت مسئله داندیښنې وړنه ده ددوی دنفوذمخه نیول شوي اولس په ټوله توانمندی دمجاهدینو ترڅنګ ولاړدی

پوښتنه

څنګه چې دکابل . کندهار دلویې لاری زیاته برخه دغزني په ولایت پر ته ده ، که مهرباني وکړی دنوموړي لاري دامنیت په اړه لږ رڼاواچوی چې مجاهدین دعاموخلکواومسافروخوندیتوب لپاره څه پروګرامونه لري اودغلواوداړه مارانومخه یې څومره ډب کړي اوکه داخبره هم راته وکړي چې که دمجاهدینوله لیکوڅخه خدای مکړه څوک بده استفاده وکړي اوعام مسافروځوروي ، دهغوافرادودتعقیب اوورڅخه دپلټنوپه باب مراجع فعالي اوڅومره چټکي دي ؟

ځواب

دکابل قندهارپه لویه لاره په هره څو کیلومتري مسافه کي ددښمن پوستی وجودلري نواکثریت غلاوې اولوټماری دغلام رژیم دعسکرواواربکیانولخوا ترسره کیږي، مجاهدینوله اولس سره دهمدردۍ په غرض دخبرپاڼوله لاري موټروانانو ته دتلیفون مخصوصي شمیري ورکړي ترڅوله ستونزوسره دپیښیدلوپه وخت مجاهدینوته خبرورکړي چې ددغه کار په نتیجه کي دغلا اولوټمارۍ کچه ډیره راکمه شوي ده ،یوځل دشلګردناني په سیمه کی لوټمارانو ۳۰۳ډوله سروس موټر ته مخه نیولې وه موټروانانو مجاهدینوته خبرورکړ، ډیرژرمجاهدین سیمی ته وروررسیدل له یوڅه کم مقاومت وروسته دوه تنه غله له وسلوسره ژوندي ونیول شول اوپاتي نوريي په تیښته بریالی شول ، لله الحمددموټرسپرلي ورڅخه وژغورل شوې چي دغه دوه تنه غله داختصاصي محکمي دحکم له مخي دخپل جرم په جزاورسیدل اوالحمدلله دمجاهدینوپه لیکوکی تراوسه پوري داسي څوک ندی پیداشوی چي دمجاهدله نوم نه په استفادې سره دې په غلالاس پوري کړي، که خدای مکړه داسي څوک پیداشي نوان شاالله تعالی ډیرژربه زموږدځارني دګروپ لخوانه نیول کیږي اوشرعي محکمي ته به سپارل کیږي.

پوښتنه :

دغزني ولایت له ولس سره دمجاهدینودارتباط په باب که څه راته ووایي چې ترمنځ یې همغږي ،یعني ناسته ولاړه، مشوري اودمتقابلي همکاری سطحه څه ډول ده ؟

ځواب

دغزني ولایت مجاهدین له خپل اولس سره ښه رابطه پوره همغږي ناسته ولاړه لري داولس له مخلصواوباتدبیره وګړوسره مشورې کوي اودخلکوحقوقي مسائل په ښې طریقې سره حل اوفصل کیږي دهري ولسوالۍ په اداری تشکیل کي دښواخلاقوخاوندتکړه عالم دملکي مسؤل په حیث دنده ترسره کوي ترڅواولسي موضوعات دمصلحینو، حکمینویادمحکمې له لاری حل کړي چي داله اولس سره دهمغږۍ ښکاره ثبوت دی اولس هم له مجاهدینوسره ځاني اومالي مرستې کوي په ډیروسختوشرایطوکې په خپلوکوروکې دشپې ځای ورکوي دمجاهدینودحفاظت اوساتنې په غرض په سیمې کې پیرې کوي.

داسلامي امارت مجاهدین دالله ج په نصرت اوداولس په مټ وتوانیدل چی دغزني ولایت حداوسط اویا ۷۰٪ په سلوکې سیمې له خارجیانواودهغوی دداخلي مزدورانوله شتون څخه پاکه کړي.

پوښتنه

محترم مولوي صاحب ، په غزني کې دجهادي ژوندإروند که کومه تازه خوږه اوجالبه خاطره ولري چې تاسي ورسره مخ شوی یاست اوخپرول یې عمومي اوجهادي ګټه ولري شفقت به مووي؟

ځواب

د جهادي ژوند خاطري خو خورازیاتي دي زه به د مثال په توګه دوه درسره شریکي کړم چې بیخي نوي او تازه دي

لومړۍ خاطره :

دګیلان ولسوالۍ ته لویه قوه راغله په سیمیزي تبلیغاتی راډیوکي دښمن په ډیر کبراوغرورسره اعلان وکړچې ډیرژربه موږدګیلان ولسوالي له طالبانونه ونیسواوطالبان به ورڅخه اوباسو، مجاهدینودقوی ایمان اومتین عزم له مخی اته شپې اوورځې مسلسل له دښمن سره مخامخ مقاومت وکړ، ډارن دښمن په نهمه ورځ دسیمې دسپین ژیرولـه لارې مجاهدینوته خواست وکړچې تاسوموږته فقط یوځل دګیلان په ولسوالې دګزمې کولواجازت راکړی نورموږخپل عملیات پای ته رسوو، مجاهدینودنظامی شورای دپریکړی په اساس دوی ته جواب ورکړچی موږبه دژوندتروروستی شیبې هم دااجازت درنکړوچی دګیلان په پاکه خاوره دې تاسوپلیت قدمونه کیږدئ.

تردې وروسته جګړې نورهم شدت پیداکړچې بالاخره په لسمه ورځ دښمن له سختې شرمونکې ماتې سره مخ شواوپه

ټيټوســـــتر ګوله ســـــيمې نــــــه وتښـــــتيدلويوتن غـــــلام اجير عسكر اسير ونيول شو،دوه ميله كلاشنكوفونه اويودانه دوربين يې غنيمت شول

دوهمه جالبه خاطره

دښمن دخو ګيانوپه ولسوالۍ کې نوې پوسته جوړه کړه چې دمجاهدينولــه شــديدمقاومت ســره مـخ شــول پــه دريمــه ورځ مازديګر مهـــال مجاهدينوپـــــه دغــــه پوســـــته تعرضــــي بريدوكړ دغورځنګ په نوم داربكيانوقومندان دمخابرې په ليكه دمجاهدينوپــه چينـل كـې داسلام مقدساتو ته ډيرزيـات سپكاوى وكړ دغه راز يې داسلامي امارت مشرانو ته يې بدالفاظ و كارول ،يوه مجاهديې دمخابرى له لارې په دې ټكوجواب ور كړ (اى الله تعالى ! په خپل قدرت كامله سره دغورځنګ خوله ورماته كړه اوفتحه موږ ته رانصيب كړه ماله ځان سره وويل انشأالله تعالى دغه دعابه قبولــه شي ،جنـګ دشپې ترلسوبجوپورې دوام و كړپــه يـوه بجـه دشپې دغزنى له مركزنه ددغې پوستې د كومک لپاره يوه لويـه قوه راغلــه خو كلــه چـې هغـوى لــه كومـک ور كولواوسـيمې تــه لــه نوتلوعاجزپـــاتې شــول نــوېې دپوســتې عســكروته دتيښــتې امرو كړچې همداسې وشول دپوسـتې عسكرو تښـتيدل اوپوسته مجاهدينوفتح كړلـه ،دغزني پـه نظـامي روغتـون كـې ديـوه رابـط ډاكتر دمعلوماتوپــه اسـاس ددغـې پوسـتې شـپږتنه اربكيـان مـړه اوځلورنوريي سخت ټپيان ووچې غورځنګ نومى هم پـه ټپيـانو كى وودغـه ډاكتر دوينا لـه مخې غورځنګ نومى اربكى قومندان پـه خوله كې لګيدلى وو،اوس يې هغه خوله اوژامـه ماتـه شوې وه چې ګړى وړاندې يې داسلام مقدساتو ته وربانديې ښكنځلې كولې اوس پـه ډيربـدحالت كې دمجاهدينودرابط ډاكتر ترڅړولاندى پـروت اونورى اوتې بوتې يې غږولې چې داصحنه هم زمالپاره ډيره جالبـه وه.

پوښتنه

جناب ، والي صاحب ، كه څه پيغام اوځانګړي ټكي لرى چې دمركي په جريان كې ورته اشاره نه وي شوي ، مهرباني و كړئ.

جواب

زه خپلو قهرمانومجاهدينو تــــه داپيغـــام لــــرم چـــې دابوبكر الصديق رض هغه نصيحتونه په نظر كې ونيسي چې خالدبن وليــد رض تــه يــې پــه يوليــک كــې اسـتولې وو،ابوبكر الصـديق دمرتدينوپــه مقابــل كــى يــولس جهــادي محاذونــه جــوړ كړل دهرمحاذلپــاره يــې يــو يوقومنـدان او دټولوپــه ســرېې خالــدبن وليدداعلى قومندان پـه حيث وټاكـه ، هغـه تـه يې پـه استول شوي ليک كې داسې هدايات وليكل

(۱)په پټه اوښكاره كى له الله ج نه وويرېږه

۲.مرتدينو تــه اول بلنــه ور كــړه اوداور تــه روښانه كــړه چې ددوى په اسلام اوداسلام په دوى څه حقونه دي

۳.خپلـه تګلاره مـه پرېږده اوخپل كارونـه پـه اخلاص سـره سرته رسوه

۴..په ښه زير كتياله كفارواومرتدينوسره وجنګيږه

۵..خپـل ملګـرى خپـل منځـي اخـتلاف تـه مـه پريـږده ترڅوملګرو كې كمزوري پيدانشي

كه دحضرت ابوبكر الصديق پـه دغوهداياتوعمل وشي دالله جل جلالـه نصرت بـه مونصيب شي زمادوهم پيغام داده چى عام اولـس سـره ښـه چلنداونيكـه رويـه وكړوځكـه داديـارلس كالـه جهادمودالله ج په نصرت اودعام اولس په مټ اومستقيمي همكارۍ ترسره كړى دغه اولس لـه موږسره پـه جهادى بهير كى عملاسهيم دى نوبايـدددوى مشـروع غوښـتنې واوراواوحقوقوتـه يـې ډيرپـام وكړو.



# داسلامي او

# نا اسلامي (ديمکراتيک)

# نظام توپير!

بشير

هو! مور د فرمايشي ديمکراسۍ حشر وليد، پټه اوکرغېړنه څېره ښه رسواشوه اوزمونږ هېوادوالودسر په سترګو وليدل چې د ديمکراسۍ ټولې نارې او سورې نمايشې اوجعلې دي؟ دولسمشرۍ دانتخاباتو کرغېړنې پروسې خو يې نورې پټې نيمګړتياوې هم رابرسيره کړې چې ديوه ولس په سرنوشت دملنډو وهلو ښه لار ديمکراسي ده ،بل دا هم جوته شوه چې دنيواکګرو ځواکونو اوهېوادونو ته دبيرته پاته ولسونودايل کولو ښه پلمه ديمکراسي ده؟

څنګه چې ديمکراسۍ دزيږون ټاټوبی لويديځ دی، دختيځوالو ولسونو لپاره ديمکراسي يو اجنبي نظام و،خو دلويديځ پرلپسي يرغلونو او دخپلو وسايلو په مټ وکړای شول چې په ختيځوالو هم خپل فکر تحميل او ومني، په دې لړ کې افغانستان تر يوحده خوندي و، دنورو منطقوي هېوادو په پرتله لږ ډېر خپلو عنعناتو او اقداروته ژمن و، ليکن ديوولسم ستمبر نه

وروسته چې کله امريکا دټولې صليبي نړۍ په ملتيا پرې يرغل راوړ، تر څنګ يې ځان سره

دبې ۵۲ په وزرو کې دديمکراسۍ سوغات هم راوړ، نن افغانستان کې هم هغه ددامريکا يې سوغاتي ديمکراسي پلې ده

لومړي سر کې امريکا دنړيوالې ميډيا په تبليغ افغانانوته دا زهنيت ورکړی و چې دديمکراسۍ راتلو سره سم به دافغانستان کانې سره لالونه اوجواهر شي ، لوږه به ورکه شي ،فقربه نابود شي ،جنګونه به تم شي، سوله اوکراري به وزرونه وغوړوي، خو په عمل کې هيڅ هم ونشول ،امريکا پوه شو چې نور دکرزي سيکه له چلښت لويدلي ورته افغانان دبيکاره ماشيني پرزې نسبت کوي ،نور ګرانه ده چې ور باندې افغانان تيروزي

اوس دهغه( کرزي ) ځای نيولو لپاره په اشرف غنی يا عبد الله باندې ګوته ايښې ،غواړي په هغوئ دواړو کې يودخپل خدمت لپاره غوره کړي

البته دلته یوشي دپام وړ دی چې امریکا ددې دواړو لاسپوڅو ترشاه پخپلو کې دافغانانو جنګولو اراده لري، ځکه داکار ورته دخپلو اوږدمهالو ګټو لپاره داوږدې میشتیدنې فرصت برابروي، ددې لپاره دافغاني قومونو ،توکمونو اوژبنیو توپیرونو دعنوانولو له لارې هوډلري افغاني وحدت مات کړي، لنډه داچې دیمکراسي دامریکا دارادې یوتابع نظام دی چې هغه هرڅنګه وغواړي هغسې یې نړۍ دازادو ولسونو دایل کولو لپاره کاروي بله داچې دیمکراسې دافغاني اقدارو او عنعناتو نه په څرګنده یومخالف نظام دی، دافغاني ګټو اومصالحو په ځای دبهرنیو او اشغالګرو ګټې تضمینوي،هم دا وجه ده چې امریکاله دې لارې نړۍ کې ډیراعظمي فرصتونه ترلاسه کړي

جوته ده چې افغانان الحمد الله مسلمانان دي او اسلام دحکومت جوړولو لپاره خپل سستم او اصول لري،هیڅکله د دیمکراسۍ معیارونو ته اړتیا نلري، دیمکراسي دغربیانو اړتیا ده، ځکه ددې پرته خپلو موخوته درسیدو لپاره بله پلمه نلري، افغانستان کې دهر داسې حکومت له جوړیدو سره مخالفت کوي چې هغه دیمکراسۍ ته ژمن نه وي، نمایشي اوجعلي پروسې دهمدې لپاره په کاراچوي،چې وربانـدې داسلامي حاکمیت مخه ونیسي،ددې غرض لپاره یې نړۍ کې په لوی شمېر غلامان دیوهانواوسیاسیونو په نوم ګومارلي دي، هغوئ ورته تبلیغات تنظیموي، خلک روزي، نانډریزې سیالۍ او مقابلې تدویروي.

کله چې پوشه چې ددیمکراسۍ په شعار خلک نه تیروزي،نو اوس یې دملي یووالي شعار پورته کړی ،دخپلو لاسپوڅو ټولې خواوې د ایتلافي حکومت په جوړولو اومنلو باندې قانع کوي

جوته شوه چې امریکا په دې سره یو واربیا دافغانانو په ستر ګو کې خاورې اچوي دملي یو والي په شعار خلکوته باور ورکوي چې راتلونکی حکومت دخلکو استازی حکومت دی، لیکن دافغانانو اکثریت پوهیږي چې امریکاله دې لارې څه په پام کې لري؟ نو افغانانو لپاره به داشغال ترسیوري لاندې دملي یوالي په نوم حکومت د کرزي دحکومت نه کوم توپیر ونلري اونه به یې پریکړو اورادوته دخپلواک افغان دولت په حیث احترام ولري.

بس دافغانانودټولو ستونزو یواځینی حل اسلامي نظام دی ! ! او داسلامي اونا اسلامي نظام توپیر یابیلتون په دې کې دی، چې په نااسلامي ټولنو کې حکومت ته دیوه حق اوفایدې په توګه کتل کیږي، له دې وجې سیالې ډلې ټپلې دفایدې ترلاسه کولو لپاره ټولې روا اوناروا وسیلې کاروي، هغوئ تل دواک په کشمکش کې ښکېل وي چې دحکومت فایده څنګه اوپه څه ترلاسه کړي؟ څنګه ځان مشر، پاچا، رییس کړي؟

ددې لپاره مختلفې ډلې ټپلې جوړوي، هغوئ درایه ورکونکو دتیرایستلو لپاره مختلفې پلمې، حیلې، اوبهانې جوړوي، هره ډله دځان په ګټه دروغ وایي، ناوړه تبلیغات اوپروپاګند کوي، دد دروغو ویلو لپاره ځانګړي ټیمونه توظیفوي ، هغوئ خپل مخالفان په ډول ډول تورونو تورنوي

هرچې اسلام دی هغه حکومت یو امانت بولي، مسؤلیت یې ګڼي، دواکمنو دعیاشیو اومستیو توکیو موندلو زریعه اوسیله ندی،دمسلمان مشر اوخلیفه په اوږو ددنیا اواخرت دواړو درووند بار ایښودل دي، هر هغه شخص چې پخپله قدرت غواړي، هغه دمشرتوب او امارت لپاره اهل ندی، هرڅوک چې پخپله د واک غوښتنه کوي، هغه سره دالله مرسته او کومک نه وي، یومسلمان په دې مامور دی چې هغه به پخپله قدرت نه غواړي، تردې پورې چې عبدالرحمان بن سمرة رضي الله عنه ته رسول الله ﷺ یووار وویل: دامارت غوښتنه مه کوه اګر که ددې لپاره دې کړی سوګند هم مات شی، نو

داستطاعت ترحده د حکومت اوڅوکی نه تیښته او ځان ګوښه کول غوره عمل دی، بله دپام وړ نکته داده چې اسلام هغه شخص داهلیت له پلوه نا اهل بولي کوم چې ځان پخپله کاندیدوي، او دقدرت غوښتنه کوي، داسلامي شریعت علماوو لیکلي: په اسلامې سیاست کې دا قتدار ترلاسه کولو لپاره دځان کاندیدولو تصور شتون نلري، هرڅوک چې داکار اسلامي بولي، هغوئ اسلام ته دخپلو اختراعی اندونو دمنسوبولو جسارت کوي.

دیوه مسلمان لپاره غوره داده چې هغه داستطاعت ترحده څومره چې ځان دواک نه لرې کولی شي، هغومره غوره ده، ځکه اسلام هغه څوک دواکمن کیدو لپاره نا اهل ګرځوي، څوک چې پخپله واک غواړي، یا ځان پخپله دمشرۍ لپاره وړاندې کوي.

افسوس چې ځیني کسان لګیا دي دخپلې ګیډې راوتلې خبرې اسلام ته منسوبوي یا پردی غربي نظام داسلام ترنامه لاندې قاچاق کوي، حقیقت دادی دغسي کسانوته دیمکراسۍ په زړه پورې ده، اسلام دديمکراسۍ له یوه نظام سره که هغه پارلماني دی که ریاستي توافق نلري، ولي په دواړو کې داعلی حاکمیت حتمي مرجع خلک ګڼل کیږي، دخلکو داکثریت هره پریکړه واجب او نه تنسیخ کیدونکې ده، په دیمکراسۍ کې داهلیت معیار داکثریت لخوا ملاتړ دی، هغه څوک دواک حق لري چې اکثریت دهغه نه ملاتړ وکړي، که هغه نور هرڅنګه سړی وی، دکردار اوګفتار له پلوه هغه نه تلل کیږي، بل داکثریت پریکړه که سمه وي اوکه خطاء په هر حالت کې لغوه کیدای نشي، ځیني اسلامي کړۍ دجمهوریت نه په دې دلیل ملاتړ کوي، چې په اساسي قانون کې به دامادده ولیکو «هیڅ قانون دقرآن اوسنت نه مغایر نشي جوړیدای» خو دا ماده لیکل په حقیقت کې دتیرایستلو پرته بله بڼه نلري، ځکه دابندیز هیڅکله هم عملي ندی، دپارلمان منتخب استازي چې هروخت وغواړي کولی شي دغه بندیزلغوه وګرځوي. زمونږ لیکوال دیمکراسۍ چې په ولسواکۍ سره تعبیروي، ددې مطلب دادی چې معاذ الله دحاکمیت اصلي مرجع ولس دی، هم دا وجه ده چې نن سبا داکثریت نظریې په پراختیا سره زیاتو اسلامي هیوادو نو خپل اسلامي تشخص له لاسه ورکړی دی، موږ پخپل ګاونډ کې وینو چې هلته ښه درانه اومنظم تنظیمونه فعال دي، بیا هم هلته دپارلمان غړي په ښکاره غوښتنې کوي چې دهیواد دنوم سره شته داسلام لفظ دې حذف کړای شي، داشرط چې خامخا به یې دهیواد ولسمشر او صدر اعظم مسلمانان وي لغوه کړای شي، داداکثریت او عاموانتخاباتو هغه بدعواقب دي دکومو له امله چې دهغو هیواد مسلمانان سرټکوي.

دیته په کتو ویلای شو چې هیواد کې دديمکراسۍ پلې کولو لپاره روانې هلې ځلې هیڅکله هم اسلامي او افغاني صبغه نلري، داخالص غربي نظام دی چې دافغانستان دزمکنیو شرایطو او ځانګړ تیاوو سره سمون نلري، دافغانانو ددودونو اوعنعناتو ممثل ندی، دایوپردی مفکوروي نظام دی چې جبراً په افغاني ټولنه تحمیل شوی دی، دافغانستان اوسنی وضعیت یومخ دپردیو اشغالګرو لخوا اداره کیږي، هغوئ غواړي دلته دخپلو ګټو لپاره پردی پال دیمکراتیک نظام وپالي، عبدالله اواشرف غني دواړه دیوه بادار غلاما ندي، چې دهغه ادار په وینا او امر میدان ته راغلي او دهم هغه بادار په حکم دواړه په یوه ایتلافي حکومت کې به کار کوي، افغانستان کې داسلام او او افغانیت په ضد روان جنګ به پرمخ بیایي، له دې وجې دا خوشبیني درلودل چې دديمکراسۍ علمبرداران به دافغانستان دښیرازۍ لپاره کار وکړي، یا به افغانستان ته داوسنۍ ژړونکي حالت نه نجات ورکړي، یا دعبد الله او اشرف غني ترمنځ مخاصمت واقعاً سیاسي مخاصمت وي! دواړه دیوه چا کارګران دي، هدف یې یو دی، منتهی ددې لپاره چې وښیې افغانستان کې انتخابات و شول، ددوسیالانو ترمنځ سیالي وشوه، عبد الله اوغني دیوبل رقیبان ښودل کیږي په حقیقت کې دواړه دیوه دربار نوکران دي.

# د اسلام تشریع اساسات

## ۶برخه

## داربعه مذاهبو دمجتهدینو او فقهاوو طبقات

مفتي شاهد (حقاني)

په تېربحث کې مو داحنافورح دمذهب دفقهاوو طبقات وڅېړل ، دې بحث کې به دګرد امت د اربعه مذاهبو دفقهاوو طبقات تر بحث لاندې ونیسو او دا به روښانه کړو، چې کوم فقهاء په کوم فقهي او علمي منزلت کې دتاریخ تشریع اودفقهاوو د طبقاتو دعلماوو لخوا ارزول شوي دي .

په (الموسوعة الفقهية )او نورو فقهي مراجعو کې لیکي:

چې لومړۍ طبقه دکبارو مجتهدینو (مطلق مجتهدینو )طبقه ده ،دوئ هغه څوک دي، چې نن هم داسلامي امت په کچ ډېر پیروان او مقلدین لري او په اصولو او فروعو کې داجتهاد لپاره خپل ځانګړي مناهج لري ،دخپل مذهب لپاره یې داستنباط او استخراج ځانګړې قواعد اواصول وضع کړي او ددوئ ځېرک شاګردان هم ددوئ په پله دخپل استاذ یا امام دقواعدو په رڼا کې فقهي استنباطات کوي ،لکه (امام ابوحنیفه رح ،امام مالک رح ،امام احمد بن حنبل رح او امام شافعي رح) غوندې اصحاب المذاهب یا دمنل شویو مذاهبو ائمه دي .

شام کې د(امام اوزاعي رح) ،مصر کې د(لیث بن سعد رح )،عراق کې د(سفیان ثوري رح او ابن ابي لیلی رح) غوندې نور مجتهدین هم شته، چې ددې اربعه ائمه وو معاصر فقهاء او ددوئ څخه یې منزلت کې کم نه وو،خو نن سبا یې مذهب اوپیروان نه لیدل کیږي او دتفاسیرو ،شروحو او خلافیاتو کتابونه ترې پور مامور دي .

دویمه طبقه : ددې مطلق مجتهدینو ملګري او شاګردان دي، چې دوئ ته د(علامه ابن عابدین شامي رح)داطلاق له مخې (مجتهدین فی المذهب) او دفقهي موسوعاتو په اطلاق (مجتهدین منتسبین) وایې ،دوئ هغه څوک دي چې دخپل امام یا استاذ لخوا په وضع شویو قواعدو او اصولو مسایل استنباط کوي اوپدې کې ورسره اتفاق لري ،مګر په تفریعاتو کې ورسره کله نا کله اختلاف کوي ،که څه هم دا روایت دمطلق مجتهدیا صاحب المذهب څخه نه وي رانقل شوي ،خو بیا هم ددوئ رایه

دمسایلو د استخراج له اړخه اړوند مذهب کې اعتبار لري، لکه دحضرت امام ابوحنیفه رح اصحاب (امام ابویوسف رح ،امام محمد رح ،امام زفر رح او امام حسن بن زیاد رح) ، یا لکه دحضرت امام مالک رح په اصحابو کې (عبدالرحمن بن قاسم رح اوابن وهب رح ) ،یا لکه (المزني رح) دامام شافعي رح په اصحابو کې ،البته دحضرت امام احمد رح اصحاب داسې ندي لکه ددې نورو مذاهبو غونډې ،چې د خپل امام څخه یې کله نا کله په فروعو کې اختلاف کړې وي ،بلکې دده شاګردان یوازې په روایاتو او فقهي جزئیاتو کې دخپل امام څخه نقل قول کوي لکه : أَبُو بَكْرٍ الأَثْرَمُ وَأَبُو دَاوُدَ السِّجِسْتَانِي وَأَبُو إِسْحَاقَ الْحَرْبِيُّ .

دریمه طبقه :مجتهدین فی المسایل دي ،چې البته په ځینو فقهي کتابونو او موسوعاتو کې ورته (مجتهدین في المذهب ) نوم کارول شوي ، خو د رسم المفتي او طبقات الفقهاوو کتابونو دمطالعې په رڼا کې ماته دا اطلاق درست نه ښکاري او نه دا دفن دمحققینو نه ثابته شوي ،نو ښه داده چې دې دریمې طبقې فقهاوو ته (مجتهدین فی المسایل )ووایو، او دوئ هغه څوک دي ،چې له خپلو امامانو څخه نه په اصولو او نه په فروعو کې مخالفت کوي، لکن هغه مسایل استنباط کوي، چې دده له امام یا یې اصحابوڅخه پکې روایت نه وي راغلی او هم د مسایلو په استخراج کې دخپل امام د منهج کلک پابند او ملتزم وي ،البته کله نا کله دخپل امام سره په هغو مسایلو کې اختلاف کوي، چې په عرف بناء وي او دا مسایل ددې قبیلې څخه نه بولې چې ګوندې داختلاف دلیل ورسره شتون لري، بلکې وایې چې دلته اختلاف زمان او عرف دی ،داسې چې که چیرته یې امام په هغې اطلاع ومومي چې دوئ پرې اطلاع ترلاسه کړي ،نو ددوئ رأیې ته به رجوع وکړي او دوئ هغه څوک دي ،چې دمذهب په تحقیق ،دقواعدو په تثبیت او دخورو ورو مسایلو په ټولو کې پرې اعتماد کیږي .

څلورمه طبقه :اهل ترجیح فقهاء دي، چې ددوئ دنده داده، چې دمتقدمینو فقهاوو لخوا پدې باب کې دوضع شویو قواعدو په رڼا کې ځینو مسایلوته په ځینو نورو ترجیح ورکوي .

پنځمه طبقه :دمستدلینو طبقه ده ،دا هغه فقهاء دي ،چې نه استنباط کوي او نه ترجیح بعضو مسایلو ته په بعضو ورکوي، لکن ددوئ کار دادی ،چې دوئ استدلال داقوالو لپاره کوي ، بیان دهغو مسایلو کوي، چې پرې اعتماد موجود وي ،د ترجیح له حکم پرته ددلایلو ترمنځ موازنه کوي او همداسې دهغو مسایلو په باب چې دعمل کولو لپاره تر نورو الیق او اجدر بیان نه کوي ،البته که دقیق نظر وشي، نو په ډاګه به شي، چې دا دطبقه له مخکنیو دوو هغوطبقو څخه په مرتبه کې کمه نده او ددې امله دا وینا هم سمه ده ،چې داورستي دریواړه طبقات خپلو کې سره متداخل دي او کوم ډیر تفاوت یې منځ کې نه تر سترګو کیږي، نو ددې امله دریواړو ته مشترکې بیلګې هم بسنه کوي ،لکه له احنافو څخه (امام ابومنصور ماتریدي رح ،ابوالحسن کرخي رح ،جصاص الرازي رح ،ابوزیدالدبوسي رح شمس الائمه حلواني رح او شمس الائمه سرخسي رح ) غونډې نامتوعلمي شخصیتونه مثالونه کیدای شي ،همداسې دامام مالک رح دمذهب له امامانو څخه دافقهاء دي : (أَبُو سَعِيدِ الْبَرَادعِيُّ ، وَاللَّخْمِيُّ ، وَالْبَاجِيُّ ، وَابْنُ رُشْد ، وَالْمَازِرِيُّ ، وَابْنُ الْحَاجِبِ ، وَالْقَرَافِيُّ) ، له شوافعو څخه دا علماء دي :(أَبُو سَعِيدِ الإِصْطَخْرِيُّ ، وَالْقَفَّالُ الْكَبِيرُ الشَّاشِيُّ ، وَحُجَّةُ الإِسْلَامِ الْغَزَالِيُّ ) دي ،او له حنابلوو څخه دا فقهاء دي :(أَبُو بَكْرِ الْخَلَالُ ، وَأَبُو الْقَاسِمِ الْخِرَقِيُّ ، وَالْقَاضِي أَبُو يَعْلَى الْكَبِيرُ)…….

که څه هم دتشریعي تاریخ پوهان ددې فوق الذکرو فقهاوو په

مراتبو او طبقاتو کې اختلاف لري ، خو په ټولیز ډول پدې سره متفق دي ، چې دا علمي ستې دمسایلو په تثبیت له غوره ماضي څخه برخمند دي او پدې کې کومه ستونزه نشته .

## مقلدين

مقلدين : هغه څوک دي، چې داجتهاد په درجه کې نه وي او ددوئ عمل په قوت دنقل کې وي ، چې دا دوو طبقاتو ته ويشل کيږي ،يوه د(طبقة الحفاظ) او بله د(طبقة الاتباع المجرد ) ده.

الف -طبقة الحفاظ :دوئ هغه ديني پوهان دي ، چې دمذهب اکثره احکام او روايات ورته معلوم وي او دوئ په اجتهاد کې نه بلکې په نقل کې حجت وي ،نو دوئ په نقل درواياتو ، ددې رواياتو څخه دډير واضح دبيان کولو ،ترجيحاً داقوى رأيې په نقل کې ،پرته ددې څخه چې دوئ ورته ترجيح ورکړي حجت وي ،چې علامه ابن عابدين شامي رح ددوئ په باب وايې چې ژباړه : او دوئ قادر وي داقوى ،قوي او ضعيف ترمنځ په تميز او تفکيک باندې ،او همداسې د ظاهرالرواية، ظاهرالمذهب او نوادر الرواية په تميز هم توانايې لري ،لکه دمعتبرو متونومصنفين يعنې لکه (صاحب کنزالدقايق ،صاحب تنوير الابصار ،صاحب الوقايه او صاحب المجمع ) چې ددوئ شان دادی ،چې کمزورې روايات او مردود اقوال به خپلو کتابونو کې نه را نقلوي ،الموسوعة الفقهيه ددوئ په باب بيا وايې چې ((وَعَلَى هَذَا لَا يَكُونُ عَمَلُهُمُ التَّرْجِيحَ ، وَلَكِنْ مَعْرِفَةُ دَرَجَاتِ التَّرْجِيحِ وَتَرْتِيبُهَا عَلَى حَسَبِ مَا قَامَ بِهِ الْمُرَجِّحُونَ ، وَيَخْتَلِفُونَ حِينَئِذٍ فِي نَقْلِ التَّرْجِيحِ ، فَقَدْ يَنْقُلُ بَعْضُهُمْ تَرْجِيحَ رَأْيٍ عَلَى رَأْيٍ ، وَيَنْقُلُ الآخَرُ خِلاَفَ ذَلِكَ ، فَيَخْتَارُ مِنْ أَقْوَالِ الْمُرَجِّحِينَ أَقْوَاهَا تَرْجِيحًا وَأَكْثَرَهَا اعْتِمَادًا عَلَى أُصُولِ الْمَذْهَبِ ، أَوْ مَا يَكُونُ أَكْثَرَ عَدَدًا ، أَوْ مَا يَكُونُ صَاحِبُهُ أَكْثَرَ حُجِّيَّةً فِي الْمَذْهَبِ . )) ترجمه : ددوئ کار به ترجيح نه وي ،بلکې درجات دترجيح به ټاکي او د مرجحينو په ترتيب سره به يې مرتب کوي ،اختلاف به دترجيح پر وخت سره کوي، بعضې به دترجيح نقل دبعضو په بعضو باندې کوي او نور به يې خلاف کوي ،نو دوئ به يې غوره کوي، دمرجحينو اقوى ترجيح اوهغه چې دمذهب په اصولو يې زيات اعتماد وي، يا يې عدد زيات وي اويا يې صاحب په مذهب کې دزيات حجت خاوند وي ) دوئ ته هم دافتاء ورکولو حق شته ،خو البته له هغو مخکنيو څخه يې دايره څه تنګه ده ، په( فتاوى خيريه )کې وايې چې : وَقَدْ قَالَ فِيهِمْ ابْنُ عَابِدِينَ : وَلاَ شَكَّ أَنَّ مَعْرِفَةَ رَاجِحِ الْمُخْتَلَفِ مِنْ مَرْجُوحِهِ وَمَرَاتِبِهِ قُوَّةً وَضَعْفًا هُوَ نِهَايَةُ مَآلِ الْمُشَمِّرِينَ فِي تَحْصِيلِ الْعِلْمِ . فَالْمَفْرُوضُ عَلَى الْمُفْتِي وَالْقَاضِي التَّثَبُّتُ فِي الْجَوَابِ ، وَعَدَمُ الْمُجَازَفَةِ فِيهِ ، خَوْفًا مِنَ الاِفْتِرَاءِ عَلَى اللَّهِ تَعَالَى بِتَحْلِيلِ حَرَامِهِ وَتَحْرِيمِ ضِدِّهِ

(الفتاوى الخيرية ٢ / ٣٣ ط الأميرية . )

ددې طبقې دنده دنقل دصحت له حيثه نه، دقوت ددليل له حيثه، تصنيفات او په مذهب کې داقوالو جمع کول دي .

ب -الْمُتَّبِعُونَ : ددوئ څخه هدف هغه څوک دي، چې دمذهب سره په اړوندو مسايلو د نورو اتباع کوي او دهغه چا پيروي کوي، چې مخکې يې په اجتهاد ،ترجيح بين الاراء او استدلال کې مخينه موندلې وي ،دوئ صرف د هغو کتابونو فهم کولای شي، چې ترجيحات پکې نور فقهاوو کړي دي ،دوئ پخپله درواياتو تر منځ ترجيح نشي کولای او نه يې دمرجحينو غوندې علم وي ،چې ددوئ په هکله ( علامه ابن عابدين شامي رح فرمايي(( لا يُفَرِّقُونَ بَيْنَ الْغَثِّ وَالسَّمِينِ ، وَلا يُمَيِّزُونَ الشِّمَالَ مِنَ الْيَمِينِ ، بَلْ يَجْمَعُونَ مَا يَجِدُونَ كَحَاطِبِ لَيْلٍ ، فَالْوَيْلُ كُلُّ الْوَيْلِ لِمَنْ قَلَّدَهُمْ . ))

(رسم المفتي لابن عابدين )




# سرپورته کوه د خپلواکۍ بیرغ وړه!

لیکوال: دالمحمد ناوک

دتورو شرنګې کې، د اسانو ششنې کې، د زخمیانو کړیکو او د تکبیر په ملکوتو چیغو کې یې وړاندې ګام نه شواى اخیستى، په اس سپور ځوان په ښي لاس کې محمدي بیرغ رپاند و، په ټول لښکر کې د بیرغ په رپیدا وینه په شور کې وه، ټول ډاډه و، چې دوی لا شته، ټول پوهېدل چې زموږ بیرغ لا لوړ دی، لوړ پر دې مانا چې لا هم د ولاړېدو توان لرو، لا هم دوړاندې تګ زور لرو، لا هم په درو زړو تنو د دوو لکو رومیانو په وړاندې د همدې بیرغ رپېدل ساتلی شو.

دا د مؤته غزا ده. په اس سپور ځوان محمدي بیرغ د دوو لکو رومیانو په وړاندې رپاند ساتلی دی، له اسه ښکته شو خپل اس یې په توره وواهه او په اسلام کې لومړی ځل د مجاهد له خوا اس شهید شو. وړاندې یې منډه واخیسته، بیرغ رپیده، بیرغ په لښکر کې ساه چلوله، بیرغ د سر لوړۍ ډاډ ورکاوه. بیرغ په دوی کې د راټولېدو زور پیدا اکاوه.

د یو کافر توره یې ښي لاس ته سمه شوه. لاس یې پرځمکه ولوید. بیرغ یې ترځمکې پرېښنبود. ښی خېرې له ځمکې ورته کتل چې، کینې خپرې خپلې ګوتې د بیرغ پر ډنډه راټولې کړې، بیرغ وخندل او په ټول لښکر کې

یې د حال په ژبه زوره تکبیر ناره وکړه. په چپ لاس کې یې د بیرغ رپېدل وساتل، ځوان وړاندې روان و، بلې تورې کینې لاس په ځمکه وویشت، د لاس خېره له خندا شنه شوه، دواړو خپرو د لښکرو له زوروړو بوټونو لاندې په خپلو ځنګلو نارې وهلې:

بیرغ ونه لوېږې! بیرغ ځمکې ته مه پرېږدئ!

ژر یې محمدي بیرغ په ځان پورې کلک ونیو په سرو وینو رنګ ځوان د پرې شویو لاسونو په پاتو برخو په ټټر پورې کلک ونیو. په ده کې لا وس پاتې و، دی لا وړاندې روان و، د ده دوه لاسونه د لښکر تر پښنو لاندې ورک شول، ده خپلې خپرې د اسانو په پښنو کې پرېښنودې، خو بیرغ یې لوړ وساته. بیرغ رپیده. د ده له پاتو لاسو نو سرې وینې روانې وې. ده د بیرغ په رپېدو ساه اخیسته.

وروستۍ زوروړې تورې په ښي اوږه په دوه برخې نیم کړ. ګډوډ پرځمکه ولوید. روح یې د لښکر لپاسه وخندل، روح خپل کالبوت په ځمکه دوه ټوټې لیده. د حضرت جعفر رضی الله عنه دوه برخې بدن پرځمکه ولوید.

خو بیرغ د لکونو رومیانو ترپښنو لاندې کېده چې حضرت عبدالله بن رواحه رضی الله عنه پورته کړ.




## په جنګ کې

(ملا محمد داود همت)

پیداشومه په جنګ کې رازلمی شومه په جنګ کې
خاوند دسپینې توري جنګیالی شومه په جنګ کې
بخښلی راته رب دمور په پیو کې غیرت وو
نو ځکه ویاړ ګټونکی بریالی شومه په جنګ کې
وهمه دنړۍ له استکبار سره ډغرې
راوړونکی دبریاوو ننګیالی شومه په جنګ کې
له مانه وړاندي څومره اتلان چې دي تیر شوي
زه هم دهغو تللیو لار وی شومه په جنګ کې
څپې او سرې لمبې دانقلاب رانه را تاو شوې
همت زما ملاتړی شو ژوندی شومه په جنګ کې
ځواکونه دځواکمن غلیم مې ګورئ تار په تار کړل
په قهر راځر ګند لکه زمری شومه په جنګ کې
ور ووتم دژوند نوې سپیځلې مر حلې ته
احساس کړمه پیاوړی ګړندی شومه په جنګ کې
په خوند او په قیمت دآزادۍ هله خبر شوم
چې سم په مردکو سوری سوری شومه په جنګ کې !!
څښتن مې مدد وکړ او ملکو بدر ګه کړم
(داؤد همته)اوس دکار سړی شومه په جنګ کې

## نازولی انقلاب

(نظام کندهاری)

بیا به په ناز نازیو نازولی انقلاب راشي
یا به له آسمانه د رقیب پر کور عذاب راشي
تول به لمن شي له ګل بڼ نه د خزان ظالم
بیا به په خندا خندا بلبل او ګل ګلاب راشي
نه به میکدې نه میخانې نه کلیساوي وي
یو وار چې بیا دور د ممبر او د محراب راشی
ورک به تورتمونه د فتنو او فسادونو شي
لمر غوندي روښانه به عمر عالیجناب راشي
ورکي به شي چیغي د شوم بوم زمونږ له کلي نه
سیوری د همای به راشي بیا به سپین عقاب راشي
ته مي اوس تعذیب په قسما قسم وحشتو کوه
بیا بي یوه ورځ زما او ستا تر منځ حساب راشي
میاشت د اجابت ده اې نظامه خدای ته سوال کوه
بیا چي پر وطن باندي نافذ د رب کتاب راشي

## خیبري فتحې

(ولی الله ذهین)

راختلی د خوښۍ ځلاندې لمر دی
اې خیبره پل او نوم دې بختور دی
هسکې غاړې له زندان اتلان راغلل
په یو ورځ باندې کوچنی او لوی اختر دی
تم شه تم شه د صلیب د نړۍ پلاره
راوتلی د مهدي امام لښکر دی
وار دي اخلي ځوریدلیه فلسطینه
ایوبي د وخت ژوند ثالث عمر د ی
لکه ستوری مور ته لار د نجات ښیي
شیطانانو ته طالب جانان خطر دی
د ذهین د امید و محور طالبه
په نامه کې دې رب ایښی لوی اثر دی

## عیدآمد

(حمید حقیقی)

عیـــد آمـــد عیـــد دوران جهـــاد
عیـــد تقـــویم حـــق ورفـــع فســـاد
عیـــد رشـــد مـــؤمنین دیـــن شـــان
عیـــد تسـلیط مسـلمان بـــر مـــراد
عیـد یکـــه ایـــن دنیـــه پـیش رفتـــه را
زد مشـــتی بـــر دهن او زنـــده بـــاد
روزی عیـــد مـــا عیـــد طوفان غـــم
بـــود از دســـت زبـــر دســـتان شـــاد
شـادی شـــان روز بـــه روز افســـرده شـد
از خجالـــت ســـر فروانـــد ر بـــلاد
پـــول رفـــت تانـــگ تـــوپ و زور و زر
دولـــت وشـــا هنشـــهی نـــام ونـــژاد
عیـــد مـــا اعجـــاز آور عیـــدی بـــود
دادشـــان و شـــوکت ایشـــان بیـــاد
نـــی کـــه تنهـــا شـــوکت ایشـــان دریـــد
ارهٔ بـــر گـــردن مســـتان نهـــاد
خیـــل مـــزدور خیـــل افرنـــگ ویهـــود
از غـــم افســـردگی آزرده بـــاد
مـــا بـــرای حـــق پرسـتي ســـر دهـــیم
دیـــن جماعـــت بهـــر تســـخیر بـــلاد
حیـــف وصـــد افســـوس بـــر آنـــان وضـــیع
دائمـــا محصـــور درفکـــر عنـــاد
از حســـادت وز عنـــاد و خـــود ســـری
نقـــش میخواهنـــد درأم البـــلاد
مـــا بـــه فضـــل و رحمـــت آن کردگـــار
نقـــش خـــوبي پـــرده ایـــم دراجتهـــاد
از حقیقتهـــا حقیقـــي چنـــد گفـــت
لا تعـــد دان احصـــای مـــراد
بـــر ســـر ایـــن مـــردم پســـت و پلیـــد
ایـــن شـــعارم هســـت کینهـــا مرده بـــاد

## بی ضمیره مسلمان

(مولوی رضوان الله فیضاني)

مسـلمان چـې لـه کـافر سـره جلـیس شـو
خلکـو واوري سـکنی ورو د ابلـیس شـو
چـې یهـود او نصـارا خپـل دوسـتان بـولی
د تـولی د منـافقو لـوي رئـیس شـو
د اسـلام سـپڅلي لاره یـې چـې پرېښـوه
د الله پـه لعنتونـو کـې غمـیس شـو
هغـه څـوک چـې شـو قربـان د خـدای لـه دینـه
د تـاریخ زرینـو پـاڼو کـې نـویس شـو
چـې جـام د شـهادت پـه مینـه نـوش کـړ
پـه درګـاه خـدای بـې حـده انـیس شـو
د اسـلام بـاغ تـه یـې ورکـړه خپلـه وینـه
پـري رنګـین قنـدوز، مزار، پکتیا، بادغیس شـو
چـا بـې ننګـه د پـردو عنعنـات راوړل
بـې حیـا او بـې ضـمیره ډیـر خسـیس شـو
کـوټ پتلـون قـره قـولي یـې خپـل لبـاس کـړل
ورک څـادر ورکـه پګـړۍ او ورک کمـیس شـو
دښـمنی د علمـاوو رواج شـوي
لـه بـې ننګـه مسـلمان نـه جـوړ خمـیس شـو
فیضـانی تـش پـه نامـه مسـلمان دیـو شـو
لـوټ هـا تخـت د سـلیمان او د بلقـیس شـو

## زنداني جانان

مـا پـه اوښـکو بدرګـه کړلـو جانـان د لـرې لـرې نـه
غېـږه کـې مـې کلـک کړلـو جانـان د لـرې لـرې نـه
هـېڅ مـې پـر ځـان پـوه نـه شـوم، چـې څنګـه بـه:
بشـکل مـې پـه تنـدي کړلـو جانـان د لـرې لـرې نـه
مـا یـې پـه فـراق کـې بـلا ډېـرې شـپې سـبا کړلـې
نـن مـې راروان دی زنـداني جانـان د لـرې لـرې نـه
هغـه لکـه یوسـف پـه فرعـوني زنـدان کـې بنـد و
الله راتـه حاضـر کړلـو جانـان د لـرې لـرې نـه
((درد)) بـه یـې پـه دردونـو بانـدې ودرډېـد!
کـړل بـه چـې آهونـه مـې جانـان د لـرې لـرې نـه!!

# دشهید شیخ الحدیث مولوي عبدالحکیم خالد

## ژوند او کارنامو ته کتنه

عبدالرؤف حکمت

د امریکا په خلاف د افغان اولس جهاد کومه معمولي یا عادي پیښه نه ده، بلکې دا دحق او باطل یوه مثالي ، ستره او تاریخي معرکه ده، چې د اسلام اومسلمانانو په تاریخ کې به ځانګړی ځای ولري، ددې معرکې د بریا یو علت دادی چې رهبري یې د ټولنې د زبده ، مخلصو او روښانه اشخاصو په لاس کې ده، د جهاد قائدین او مشران زیاتره علماء کرام، ددیني علومو طالبان ، د قرآن حافظان یا د ټولنې نور متدین اشخاص دي، په دې لړکې یو زیات شمیر هغه دعلم او کمال څښتنان چې باید ټولنې ته یې علمي او قلمي خدمت کړی وای هم د جهادي ضرورت له امله مجبور شوي چې قلم او کتاب کیږدي او د باطل په وړاندې مسلحې مبارزې ته ورووړاندې شي.

شیخ الحدیث مولوي عبدالحکیم خالد چې په علمي حلقو کې یې په مولوي عبدالحکیم شاولیکوټي سره شهرت درلود هم همداسې یو څوک و ، نوموړي ته الله تعالی ستر علمي استعداد ورکړی و ، د تصنیف او لیکوالۍ کمال یې هم درلود ، خو امریکایي یرغل باعث

شو چې نوموړی خپل علمي خدمت او تدریس پرېږدي او د کفر په خلاف وسله واخلي، نوموړي تر هغه مهاله دغه مبارزه جاري وساتله ترڅو په همدې لاره کې یې د شهادت جام وڅښه. راځئ یو شیبه ددې مبارز او مجاهد عالم په ژوند او کارنامو وغږېږو ترڅو مو په ورځني ژوند کې د تنویر او رهنمایي باعث شي.

### مولوي عبدالحکیم

مولوي عبدالحکیم خالد دمحمد رحیم زوی د جلال الدین لمسی چې د پښتون قوم له الکوزي قبیلې څخه و په ۱۳۸۱ هـ ق کال کې د کندهار ولایت د شاولیکوټ ولسوالۍ په شالیزاري کلي کې دنیا ته سترګې وغړولې.

عبدالحکیم خالد په یوه دین دوسته خاندان کې زیږیدلی و ،نوځکه د کورنۍ د غړو لخوا په کوچنیوالي دیني زده کړو ته سوق شو ، لومړنۍ الفباء او ابتدایي زده

کړې یې د خپل کلي په مسجد او نږدې سیمو کې ترسره کړې،نوموړی لا بیخي کشر و چې شوروي یرغلګرو دافغانستان په پاکه خاوره تیری وکړ او په مقابل کې یې مسلح جهاد زور واخیست، دغه مهال له کم عمره عبدالحکیم څخه هم د ژوند نورې بوختیاوې پاته شوې او د جهادي فریضې د اداء کولو لپاره یې ټوپک اوږې ته کړ.

**په جهاد کې له شمولیته بیاتر مشرتوبه**

ملا عبدالوهاب چې د کندهار د مرکز او سیدونکی دی او د شهید مولوي عبدالحکیم صاحب د پخواني جهاد دوخت ملګری دی وایي: د کندهار په شمالي ولسوالیو کې د کمونیستانو او شوروي یرغلګرو په خلاف د جهاد یوه قوي جبهه د شاولیکوټ او نیش په حدودو کې د دره نور جبهه وه، د کمونیستانو خلاف دجهاد له پیل وروسته ددې جبهې بنسټ د شاولیکوټ د کجور سیمې داوسیدونکي تکړه مجاهد ملا عبدالودود آخند لخوا کېښودل شو، د دره نور جبهه چې وروسته دطالبانو په جبهه مشوره شوه په شاولیکوټ، نیش ،خاکریز او نورو شاوخوا سیمو کې یوه قوي جبهه وه چې په دښمن یې سخت بریدونه کول او د کندهار – روزګان لاره یې همیشه تړلې ساتله، ملاعبدالوهاب وایي د جهاد په لومړیو کلونو کې مولوي عبدالحکیم صاحب چې عمر به لاشل کاله ته نه و رسیدلی، په همدې جبهه کې د جهاد په نیت شامل شو، نوموړی ډیر کم عمره وخو جهادي جذبه، اخلاص او همت یې خورا لوړ و، دغه مهال چې په سیمه کې کمونیستان وځپل شول او تریوه حده پراخي راغله، دکندهار ولایت مشهور جهادي مشر حافظ عبدالکریم زموږ جبهې ته راغی او له موږ نه یې غوښتنه وکړه چې دعملیاتو لپاره ارغنداب ته ښکته شو، ځکه نور په دې سیمه کې داسې هدف نه و پاته، وروسته فیصله په دې وشوه چې حافظ عبدالکریم له خپلو مجاهدینو سره ارغنداب ته لاړ او موږ په خاکریز عملیات پیل کړل، دا د جهاد ابتدایي وختونه و چې دکندهار ټولې ولسوالۍ پرځای وې او لا کومه ولسوالي نه وه فتحه شوې، دخاکریز ولسوالۍ اکثره سیمې له حکومتي سربازانو او عسکرو ډکې وې، د دره نور جبهې طالبانو په خاکریز عملیات پیل کړل په همدې عملیاتو کې مولوي عبدالحکیم صاحب هم له موږ سره وه، چې هغه مهال کشر طالب وه،ددې عملیاتو په نتیجه کې دخاکریز دمرکز په شمول ټولې سیمې فتحه او له کمونیستي عسکرو تصفیه شوې، مجاهدینو دخاکریز په مرکز کې قرارګاه جوړه کړه ، همدلته د ۲۵۰ په شاوخوا کې مجاهدین اوسیدل او نورو سیمو ته به دعملیاتو لپاره تلل، مولوي عبدالحکیم صاحب هم په همدې جبهه کې جهادي خدمت کاوو، ترڅو د ډیرو ستومانیو او جهادي مشقاتو له امله سخت مریض شو او دځیګر تکلیف ورته پیدا شو ،او دعلاج لپاره پاکستان ته لاړ.

په پاکستان کې نوموړي له علاج وروسته دیني زده کړې پیل کړې، دبلوچستان د کویټې په شالدره اونورالمدارس مدرسه چې په دوه سیټه مدرسه مشهوره وه دغه راز یې په پیښور کې هم په مختلفو مدارسو کې درسونه وویل ترڅو د ۲ کلونو په اوږدو کې یې دیني علوم پای ته ورسول او د پیښور په امداد العلوم مدرسه کې یې له شیخ الحدیث مولانا حسن جان صاحب څخه ددیني علومو دفراغت سند ترلاسه کړ.

له فراغت وروسته یوځل بیا خپلې سیمې د کندهار شاولیکوټ ته ستون شو او ددره نور په جبهه کې یې جهادي خدمت پیل کړ،دغه مهال مجاهدین په همدې سیمه کې اوسیدل او دعملیاتو لپاره به ارغنداب ، پاشمول او دکندهار – هلمند دلارې نورو برخو ته تلل او په کمونیستي عسکرو او شوروي یرغلګرو به یې بریدونه کول، مولوي

عبدالحکیم صاحب په همداسې یوه جهادي سفر کې په ارغنداب او ژړۍ کې ۷ میاشتې تیرې کړې ، او چې کله بیرته شاولیکوټ ته ستون شو دغه مهال مجاهدینو د یوې شرعي محکمې د جوړولو ضرورت حس کړ.

دغه وخت د کندهار په سطحه د ټولو مجاهدینو عمومي قاضي او د محکمې مشر په مولوي پاسني مشهور مولوي سید محمد صاحب و، مولوي پاسني صاحب بیا په هره سیمه کې محلي محاکم او قاضیان مقرر کړي و، چې په شاولیکوټ او شاوخوا سیمو کې یې د محکمې له جوړولو وروسته مولوي عبدالحکیم صاحب چې تکړه عالم او پرهیزګاره شخص و قاضي مقرر کړ.

له دې وروسته مولوي عبدالحکیم صاحب نه یوازې د شاولیکوټ، خاکریز او نیش په سیمو کې د مجاهدینو قاضي شو، بلکې په خپله جبهه کې یې د دیني علومو تدریس هم پیل کړ، تردې چې وروسته یې د تدریس سلسله د نبوي احادیثو او صحاح سته تر تدریس او د قران کریم د تفسیر او ترجمې تر دورو پورې ورسیدله او په دې توګه په شیخ الحدیث سره مشهور شو.

شورویانو په وروستیو کې غوښتل چې د روزګان په ترین کوټ کې محاصره حکومتي کسانو ته اکمالات ورسوي ددې لپاره یې یو لوی کتار جوړ کړ او د روزګان په خوا روان شو له دې قوې سره سخت جنګونه وشول چې په همدې جګړه کې مولوي عبدالحکیم صاحب په ژامه ولګید او ټپي شو.

ملا عبدالوهاب وایي مولوي عبدالحکیم صاحب چې تکړه عالم او مخلص مجاهد و په همدې سیمه کې نه یوازې قاضي و بلکې د وخت په تیریدو سره د مجاهدینو د مشر په حیث وټاکل شو، او په شاولیکوټ او شاوخوا سیمو کې یې ټولو واقعي مجاهدینو اطاعت کاوو، نوموړی ترهغه مهاله په دې سیمه کې د مجاهدینو مشر و چې د طالبانو اسلامي تحریک راپورته شو او مولوي عبدالحکیم صاحب له خپلو ټولو مجاهدینو سره ورسره ملګری شو.

**د هرج ومرج په دوره کې**

د تنظیمي هرج ومرج په دوره کې مولوي عبدالحکیم صاحب چې د شاولیکوټ ولسوالۍ د خوږ درې په سیمه کې یې مدرسه وه، د سیمې د قاضي او جهادي مشر په حیث یې په شاولیکوټ، خاکریز او نیش ولسوالیو باندې یې امر چلیده، په همدې سیمو کې یې د مجاهدینو، علماء کرامو او قومي مشرانو سره په هماهنګۍ پوره امن راوستی او شریعت تطبیق کړی و، نوموړي په دې دوره کې د ولسي خلکو په ملاتړ دوه ځله د ارغنداب له سربند څخه بیا د دره نور ترسیمې د لویې لارې څخه د خودسره ټوپکیانو پاټکونه ټول کړل او پاټکماران یې پسې واخیستل، په دې لړ کې د خاکریز د باغکې په سیمه کې د خان په نوم یو قومندان چې د عبدالمنان په نوم د چینار او سیدونکی مجاهد یې شهید کړی و، دغه راز یې د روزګان ولایت ځینې مجاهدین د دې په خاطر چې وسلې ترې واخلي شهیدان کړي و او په سیمه کې یې پاټک درلود، د مولوي عبدالحکیم صاحب په مشرۍ مجاهدینو او ولسي خلکو ورباندې برید وکړ، نوموړی یې له شپږو ملګرو سره ختم کړ او اولس یې له عذابه خلاص شو.

مولوي عبدالحکیم صاحب چې د شریعت په تطبیق کې ډیر زړور و، د کمونیستانو او هم د تنظیمونو په دوره کې یې په خپله سیمه کې پوره شریعت راوستی و، په دې لړ کې یې هغه کسان چې شرعي حدود وربانديې

ثابت شوي و په حد کړل، مولوي عبدالحکیم صاحب که څه هم د حرکت انقلاب اسلامي د تنظیم غړی و خو ټولو مجاهدینو په درنښت ورته کتل او په قضایي چارو کې یې ورته مراجعه کوله.

**د طالبانو په اسلامي تحریک کې خدمت**

د شیخ مولوي عبدالحکیم صاحب نږدې ملګری او په اوس وخت کې دنومورړي د جهادي ملګرو مشر ملا اغاجان آخند له اسلامي تحریک سره دنوموړي د وصل کیدو داستان داسې بیانوي.

طالبانو ډنډ او سپین بولدک ولسوالۍ تصفیه کړې وې، خو کندهار ښار یې لا نه و نیولی، دغه وخت دکندهار یوه مشهور ټوپکي قومندان امیرلالي غوښتل چې په بولدک کې په طالبانو برید وکړي، امیرلالي دغه وخت د شاولیکوټ ولسوالۍ مرکز هم په ولکه کې و او اصلي ځای یې د دهلې بند سره د کمپنۍ په نامه ځای و.

په همدې وخت کې چې امیرلالي او ملګرو یې په طالبانو دبرید نیت درلود طالبانو غوښتل په نوموړي او نورو ټوپکیانو برید وکړي او کندهار ښار ترې تصفیه کړي، په همدې خاطر د اسلامي تحریک مشر ملامحمد عمر مجاهد دارغنداب دحقاني صاحب په لاس مولوي عبدالحکیم صاحب ته خط راولیږه چې تاسو په شاولیکوټ کې په امیرلالي بریدوکړئ تر څو دی هلته هم مصروف شي او موږ به دلته په کندهار ښار حمله وکړو، ددې لیک تر رسیدلو وروسته مولوي عبدالحکیم صاحب راغی او له ملامحمد عمر مجاهد او د تحریک له نورو مشرانو سره یې ولیدل، د مشترکو عملیاتو پروګرام یې جوړ کړ، مولوي صاحب له ملامحمد عمر مجاهد نه وغوښتل چې که یو موټر وروسپاري ترڅو له شاوخوا ولسوالیو د طالبانو په راټولولو او انتقال کې ترې استفاده وکړي، ملا صاحب ورته وویل چې فی الحال موږ یوازې پنځه موټرلرو چې هغه د ډنډ او بولدک ترمنځ مجاهدین کار ترې اخلي، ته داسې وکړه چې په پخوانیو مجاهدینو کې دې که څوک شناخته وي له هغوی نه مرسته وغواړه.

مولوي عبدالحکیم صاحب په دې مهال د کندهار له جهادي قومندان ملا نقیب اخند څخه مرسته وغوښته، ملا نقیب اخند ورسره د یوه هینو موټر، شل ګونۍ اوړو او پنځه بیلره تیلو مرسته وکړه، مولوي عبدالحکیم صاحب خاکریز ته راستون شو، په شاولیکوټ او خاکریز کې په ټولو مدرسو وګرځید درسونه یې معطل کړل او له طالبانو یې وغوښتل چې له دوی سره ملګري شي په دې توګه یې تقریبا ۹۰ تنه طالبان برابر او مسلح کړل، او د شاولیکوټ په مرکز کې یې د امیرلالي په کسانو دبرید ترتیب جوړ کړ.

ملا اغاجان وایي دغه مهال طالبانو لا کندهار ښار نه و نیولی او په تخته پل کې و چې له دره نور څخه مولوي عبدالحکیم صاحب سره له ۹۰ تنو طالبانو د شاولیکوټ د مرکز په خوا روان شو، غرمه مو په باغکه سیمه کې تیره کړه، پوښتنه مو وکړه چې د امیرلالي ټوپکیان په څه وضعیت کې و، خلکو راته وویل چې هغوی د ولسوالۍ مرکز ته څیرمه د داماني په سیمه کې خزې او مورچې جوړولې، مازدیګر موږ وربانندې حمله وکړه، خو چې همدې سیمې ته راغلو ومو لیدل چې دوی مورچې جوړې کړې، ختې یې لا لمدې وې او همداسې ترې پاته وې حتی هندوانې او ختکي یې څیرلي و مګر خوړلي یې نه و او دشاولیکوټ د مرکز په خوا تښتیدلي و، سهار د چای په وخت طالبان دولسوالۍ په مرکز ورغلل د امیرلالي کسان پرته له جنګه

وتښتېدل او د دهلې بند په خوا لاړل په دې توګه د شاولیکوټ ولسوالۍ مرکز طالبانو ونیو چې په همدې شپه کندهار ښار هم نیول شوی و، شیخ صاحب سره له څو مجاهدینو کندهار ښار ته لاړ، د کندهار د فرقې له مخې سره د تحریک د عمومي نظامي قومندان حاجي ملا محمد آخند سره مخامخ شو او جریان یې ورسره شریک کړ، همدلته یې فیصله وکړه چې د امیرلالي په وروسته مرکز د دهلې بند په کمپنۍ سیمه به ماسپښین برید کوي.

په دې سیمه کې امیرلالي ګڼ شمیر ټانګونه، توپونه او څهل میلې رایوځای کړې او د کندهار د فرقې او قشله جدید زیاتره درنې وسلې یې همدلته نقل کړې وې، امیرلالي ویلي و چې له طالبانو سره اصلي جنګ به همدلته کوم، مولوي عبدالحکیم صاحب له حاجي ملا محمد اخند سره په ګډه ماسپښین د دهلې بند د کمپنۍ په سیمه ورغلل، له څه جنګ وروسته د امیرلالي کسانو شکست وخوړ او د اسیمه چې لسګونه میلې درنې وسلې هم په کې وې د طالبانو لاس ته ورغله.

له همدې مهاله مولوي عبدالحکیم صاحب د طالبانو په اسلامي تحریک کې د یوه فعال جهادي مشر په حیث دنده پیل کړه د روزګان او هلمند په نیولو کې یې برخه واخیسته، د موسی کلا او سنګین ولسوالیو مسؤلیت یې ترسره کړ، دفراه په ولایت کې هم څه مهال د مسؤل په حیث پاته شو، د دلارام او آب خرما په سختو جګړو کې یې برخه واخیسته او په همدې جګړو کې یې تکړه پښتاني مجاهد ملګري لکه ملا اغا، ملا عبدالمناف، ملا عبدالحلیم، ملا سفر محمد او داسې نور په شهادت ورسیدل.

نوموړي وروسته بیرته په خپله سیمه کې په تدریس پیل وکړ په همدې موده کې یې د حنفي فقهې په مشهور کتاب هدایه باندې حاشیې ولیکلې او د فوزالدارین په نوم تفسیر یې ولیکه، نوموړي تر هغه مهاله په خپله سیمه کې په تدریس بوخت و ترڅو امریکایانو په افغانستان یرغل وکړ او نوموړي یوځل بیا جهاد پیل کړ.

**دامریکایانو په خلاف جهاد**

د مولوي عبدالحکیم صاحب نږدې ملګری ملا اغاجان وایي: دامریکایانو د راتګ شپږ میاشتې لا نه وې تیرې شوې، چې مولوي صاحب د جهادي عملیاتو لپاره لومړنې ترتیبات پیل کړل، په لومړي ځل یې دامریکایانو د راتګ په اول پسرلي د کندهار د دامان ولسوالۍ د خوشاب په سیمه کې چې دلته امریکایانو تګ راتګ درلود دوه تنه مجاهدین یې استخدام کړل ترڅو یې همدې امریکایانو ته ماین کېښود او ورباندې پورته یې کړل، ورپسې یې په شاولیکوټ او خاکریز کې علماء کرامو او پخوانیو مجاهدینو ته خفیه دعوت پیل کړ ترڅو ورسره په جهادي خوځښت کې شریک شي یا مرسته ورسره وکړي، ډیرو خلکو د مرستې وعده ورسره وکړه، په دې وخت کې چې ګل اغا شیرزی د کندهار والي و د نوموړي په پروګرام خبر شو، په کندهار کې یې د همدې سیمې ملکانو او مخورو ته لویه میلمستیا وکړه، یوه اندازه نقدي تحفې یې ورکړې او په پای کې ګل اغا شیرزي ورته وویل چې له مولوي عبدالحکیم څخه لرې ګرځئ او په خبره یې مه کوئ، او که څوک ورسره همکاري کوي نو په دې پوه شي چې د امریکایانو مقابله هیڅوک نه شي کولای هغوی طیارې لري او له طیارو سره مقابله نه شي کیدلای.

له دې غونډې وروسته یوه لویه قوه هم د مولوي عبدالحکیم صاحب

پهلټون پسې شاولیکوټ ته راغله او مولوي صاحب د هلمند باغران ته لاړ

د مولوي صاحب جهادي ملګری ملا محمد اسلم وايي چې له دې پېښې وروسته نوموړي له ملا دادالله اخند سره وليدل، هغه ورته جهادي وسائل او تجهیزات برابر کړل او مولوي صاحب له ۱۱ تنو ملګرو سره د کندهار او روزګان په لاره د خاکریز مربوط د پیتاوي په کوتل کې دښمن ته کمین ونیو، همدلته په اوله ورځ د دښمن یو قومندان له څلورو عسکرو سره ختم شو او ورپسې یو لوړرتبه غربي چارواکی له موټر سره ژوندی ونیول شو او وروسته ووژل شو.

ددې خارجي کس وژل کېدو په راډیو ګانو کې هم هنګامه راپورته کړه او دښمن یې ډیر په غوسه کړ، نوځکه په ۲۸/۳/۲۰۰۳ م نیټه له کندهار څخه د ګل اغا شیرزي او د روزګان لخوا د معلم رحمت الله او جان محمد په مشرۍ لوېې قوې همدې سیمې ته راغلې دوی په عملیاتو کې مجاهدینو ته کوم زیان ونه رساوو خو د ګل اغا کسانو د اسلامي امارت د تجارت پخوانی وزیر ملا عبدالرزاق فتاحي چې اوس په کور ناست و ونیو امریکایانو ته یې وسپاره او هغوی ګوانتانامو زندان ته ولیږه.

له دې عملیاتو وروسته شیخ صاحب سیمه پرېښوده خو ۱۵ ورځې وروسته بیرته همدې سیمې ته راغی او په دښمن بریدونو ته یې دوام ورکړ د کندهار - روزګان په لاره د کاریزګي په سیمه کې یې د دښمن درې پوستې ونیولې.

دامریکایانو د راتګ دریم کال پسرلی و، چې شیخ صاحب او ملګرو یې یوځل بیا په سیمه کې په نوي روحیه جهادي بریدونه پیل کړل، دوی په لومړني برید کې د میانشین ولسوالي فتحه کړه، ورپسې یې د شاولیکوټ په زومتو سیمه کې له اشغالګرو سره سخت جنګ وکړ او دښمن ته یې درونډ زیان واړاوو، د پیتاوي کوتل په سیمه کې له دښمن سره په یو سخت جنګ کې د اشغالګرو یو لوی مرستندوی قومندان نعمت خان چې د ملا صاحب په کور کې د میشتو امریکایي ځانګړو ځواکونو همکار و ووژل شو، په دې کال په شاوخوا سیمو کې له دښمن سره نورې هم کامیابې جګړې وشوې.

په ۲۰۰۴ م کال پسرلي کې شیخ صاحب له تکړه مجاهد ملا شهزاده اخند سره په ګډه د شاولیکوټ ولسوالۍ په مرکز عملیات وکړل چې په نتیجه کې یې ولسوالۍ سقوط وکړه او ګڼ شمیر وسلې او وسائل مجاهدینو ته د غنیمت په حیث په لاس ورغلل، له دې پېښې وروسته شیخ صاحب او ملا شهزاده اخند په ګډه د شاولیکوټ ولسوالۍ د ګومبت د توپخانې په سیمه کې هم له اشغالګرو سره خورا سخت جنګ وکړ چې دښمن ته یې درانه تلفات واړول له همدې جنګ څخه وروسته ملا شهزاده آخند شهید شو.

په ۲۰۰۵ م کال کې شیخ صاحب او مجاهدو ملګرو یې لومړۍ د شاولیکوټ د زومتو په سیمه کې یوه پوسته فتحه کړه، ورپسې یې د دره نور په سیمه کې د دښمن په اکمالاتي کتار برید وکړ او د یرغلګرو ګڼ شمیر اکمالاتي ټانکر یې وسوزول، له دې فتحو وروسته شیخ صاحب میانشین ولسوالۍ ته لاړ، هلته د امریکایانو یوه لویه قوه راغله او د مرغانو په کلي کې سخت جنګ ورسره وشو، له دې پېښې څو ورځې بعد په شاولیکوټ کې هم له امریکایانو سره درونډ جنګ وشو او سخت تلفات ورته ورسیدل.

تردي وروسته هم د شيخ صاحب په مشرۍ مجاهدينو په شاوليکوټ او شاوخوا سيمو کې په دښمن ګڼ کاري بريدونه ترسره کړل، د ترين کوټ په زړه لار د وچ باغتو په سيمه کې د ټايګر بهرنۍ کمپنۍ په مرکز بريد دغه راز د ګومبت په سيمه کې له امريکايانو او کاناډايانو سره لوی جنګ ترسره شو، د ګومبت په جنګ کې د کندهار نور جهادي مشران لکه قاري فيض محمد سجاد، ملا عبدالشکور، مولوي باز محمد، ملا حيات الله مشهور په حاجي لالا او نورو ګڼو مجاهدينو شرکت درلود په همدې جنګ کې دښمن ته په درنو تلفاتو اوښتو سربيره مجاهدينو هم خوږ درلود، قاري فيض محمد سجاد په پښه او مولوي عبدالحکيم خالد په غاړه کې ټپي شو.

له جوړيدو وروسته د مولوي صاحب په مشرۍ مجاهدينو د خاکريز په ولسوالۍ بريد وکړ او دښمن يې تيښتې ته اړ کړ، په دې حمله کې مجاهدينو ۱۳ تنه مجاهدين چې د ولسوالۍ په محبس کې بنديان وو آزاد کړل، له دې جنګ څخه ۳ ورځې وروسته مولوي صاحب سره له خپلو ملګرو د نيش ولسوالۍ دره نور سيمې ته لاړ، د ددره نور په سيمه کې له دښمن سره په مخامخ جنګ کې مولوي عبدالحکيم خالد په پښه او تشي کې ولګيد او سخت ټپي شو، نوموړی تر يو ساعت پورې ژوندی و، او وروسته د همدې ټپ له امله د ۱۴۲۷ هـ ق کال د ربيع الثاني مياشتې په ۲۰ مه نېټه د شهادت لوړ مقام ته وصل شو. انا لله وانا اليه راجعون

مولوي صاحب وصيت کړی و چې که شهيد شو نوجسد دې ښکاره ځای نه دفن کيږي، بلکې داسې ځای دې دفن شي چې خلکو ته يې قبر معلوم نه شي، دنوموړي له وصيت سره سم د خاکريز ولسوالۍ د پيتاوي په علاقه کې په يوه ګمنام ځای کې دفن کړای شو، چې تر اوسه يې د هماغو دفن کوونکو مجاهدينو نه پرته هيچا ته قبر معلوم نه دی.

د مولوي عبدالحکيم خالد صاحب تر شا ۴ لوڼې او دری زامن زبيرخالد، محمد يوسف او جابر پاته شول، چې زامن يې په ديني زده کړو بوخت دي.

**يادونه او خاطرې**

د مولوي عبدالحکيم خالد جهادي ملګری ملامحمد اسلم وايي: شهيد مولوي صاحب د قرانکريم په ډير تلاوت عادت و، حتی په سفر کې به هم ورسره قرانکريم او د صحيح البخاري کوچنۍ نسخه هميشه وه، مجاهدو ملګرو ته يې د جهاد په مهال هم تعليم او تربيت ورکاوو، او چې له جهاد څخه به کور ته راستون شو ليکنه يې کوله چې په همدې فرصت کې يې د فوزالدارين په نوم د قرانکريم تفسير وليکه.

ملا نقيب الله اخند وايي: يو وخت موږ کورته ورغلو مولوي صاحب ګڼ کتابونه غوړولي وو، موږ پوښتنه ترې وکړه، ده راته وويل چې د قرانکريم تفسير ليکم، خو فکر کوم چې د تفسير جلالين د لومړني مصنف غوندې په نيمايي به رانه پاته شي، ملا نقيب الله وايي، دمولوي صاحب انګيرنه پرځای وه، نوموړي د فوزالدارين په نوم تفسير مکمل نه کړ، ۱۲ پارې يې وليکه او چاپ شو او د مولوي صاحب په شهادت سره نور پاته شو.

ملا نقيب الله وايي: مولوي عبدالحکيم خالد صاحب به د رمضان په مياشت کې د قرانکريم ترجمه او تفسير کاوو او ډير طالبان به ورته کيناستل، له شهادت څخه يو کال وړاندې حج ته تللی و، په حج کې ورته يوه عالم مشارع الاشواق الی مصارع العشاق کتاب ورکړی و، دا کتاب تردې پخوا دلته چاپ شوی نه و مولوي صاحب هغه کتاب له ځان

**غربي تحليلگران چي زياتره دامريكا اوغربي هېوادونو اهداف تبليغوي، دهغوئ له منځه لوی شمير دامريكا او نورو خارجي قواوو له وتلو وروسته دطالبانو دبري امكانات زيات بولي!! هغوئ داهم مني چې طالبان دپخوا په نسبت ښه روزل شوي ، چې څرګنده بېلګه يې دامريكا اوبرتانيې مجهزو ځواكونوته شكست وركول دي،دا داسي نمونه ده چې دطالبانو په ښې پخې جنګي تجربې اوورتيا باندې له پوهيدو سره مرسته كوي اوجوتوي چې طالبان پخپلو عزايمو او برياوو به ترډېره حده باور ولري.**

**او پـه مقابـل كـې دكـرزي د اردو او پوليسو روزنـه سربيره پـه دې چـې بيدريغه لګښتونه وربانديې شوي اوورته ګڼې اسانتياوي اسباب هم برابر دي، آن داچې دعياشيو مستيو اوفحشاوو لړ كې يې هم ورته فرصتونه برابر كړي دي، ددې باوجود دهغوئ جنګي روحيه هغسي تانده نه بريښي ، څنګه چې دطالب جنګياليوده دكرزي داردو اوپوليسو په ليكو كې زياتره جنګيالي پر نشه يې توكو هم معتاد ګرځيدلي ، دهغوئ ترشا چې دامريكا اوناټو ملاتړ نه وي ډېر مقاومت نشي كولی اكثريت كوښښ كوي دجنګ له ګرمو شيبو ځانونه په يوه اوبله بهانه وباسي**

سره راوور او پـه ګڼ تعداد يې چاپ كړ ، مولـوي صاحب پـه سيرت كې دالرحيق المختوم كتاب ډير خوښ و او ويل به يې چې پښتو ته يې ژباړم ، مولـوي صاحب پـه ژوند كې دوه ځله حج تـه تللی و ، تر شهادت يو كال وړاندې حج تـه تللی و او هلتـه يې د عرفات پـه غونډۍ او نـورو متبركو ځايونو كې د شهادت سوال كړی و ، نو چې راغی ويـل يې چې سږ كال شهيد كيږم چې همداسي وشول.

مـلا نقيب الله چې لـه مولـوي صاحب څخـه يې داحاديثو صحاح لوستي وايي مولوي صاحب پـه ښـه علم سربيره د حلم او وفاداري غوره صفات هم درلودل.

مـلا اغاجـان وايي: دامريكايـانو تـر راتـګ وړانـدې مې لـه مولـوي صاحب څخه د قرانكريم د تفسير درس وايه ،كله چې سورة الانفال او سورة التوبـه تـه ورسيدو او دجهـاد ذكـر راغی، نو مولـوي صاحب بـه بيا بيا د كفارو پـه وړاندې د جهاد ارمان كاوو ، پـه داسې حال كې چې لـه سترګو بـه يې اوښكې بهيدلې لـه الله تعالی څخه يې پـه جهاد كې دشركت او شهادت سوال كاوو.

نومـوړی وايـي مولـوي صـاحب سـره لـه دې چې فقيـر و خـو ډيـره استغناء يې درلوده يـو وخت پـه دره نـور كې يـو سړی ورتـه راغـی او ۵۰۰ روپـۍ يـې وركـړې مولـوي صـاحب پوښـتنه تـرې وكـړه د څـه لپـاره دې راكړې هغه ورته وويـل: في سبيل الله مې دركړې ، ده ورتـه وويـل بـل كـوم مسكين ته يې وركړه هغه سړي ورتـه وويـل چـې مولـوي صـاحب خـو تـه مسـكين يـې څكـه وګـوره څپلـۍ دې داسې زړې دي ، مولوي صاحب ورتـه وويـل چې ظاهرا بـه مسـكين ښكارم خو زړه مي غني دی ، او بيايي دوه تنـه مسكين طالبان وروښودل چې پيسـې هغوی ته وركړې.

ملا نقيب الله اخند وايي: مولـوي صاحب هيڅ قومي تبعيض او تعصب نه درلـود ، همـدا لامـل و چې د سيمې پـه ټولو قومونو كې يې يو شان محبوبيت درلوداو دده تر مشرۍ لاندې مجاهدين هم د مختلفو قومونو وو.

رحمه الله تعالی




اتل

دعلم او حکمت بې شمېره علوم يې ورته ورکړل، چې دلومړۍ وحی شروع د اقرأ... (ولوله) لفظ نه شوې حال داچې رسول الله (ﷺ) اُمی و، بيا رسول الله (ﷺ) وفرمايل: بيشکه زه معلم راليږل شوی يم، هم دا شان يې فرمايلي: بيشکه دحکمت مرغلرله دمومن ورکه متاع ده هرځای چې پيدا شوه هغه يې حقدار دی، الله (ﷻ) په رسول الله (ﷺ) باندې دعظيم الشان قرآن پشان کتاب نازل کړی دی، دا سې کتاب يې په بل هيڅ نبي ندی نازل کړي په دې کتاب کې الله (ﷻ) ټول بشريت ته په کايناتو کې دغور او فکر کولو ترغيب او ډېر تاکيد شوی دی، په ګڼو اياتونو کې يې بنی ادم ته حکم کړی دی چې ته دالله

غربي پوهان ددې لپاره چې د اسلام ښکلې او ځلانده څېره بدرنګه کړي پخپل ټول ځواک سره په دې کې لګياد او مصروف دي، چې په يو نه يو ډول خامخا اسلام بدنام کړي، د اسلام نوم او نښان ونړوي، دهر هغه ګام ملاتړ کوي، او پکې ونډه اخلي کوم چې د اسلام دبدنامۍ باعث ګرځي، ددې لپاره هغوئ هېڅ موقع او فرصت له لاسو نه ورکوي، په اوس وخت کې دهغوئ ترټولو لويه حربه داده چې دنوي تعليم په نوم دمسلمانانو په سترګو کې دخاورو شيندلو کوښښ کوي او د اسلام په ضد بيا بيا دا پروپاګند کوي، چې ګواکې اسلام دنويو علومو مخالف دی، او اسلام او نوي علوم له يوبل سره تضاد لري، راځئ ! تاريخ ته سترګې ور ښکاره کړو چې ايا رښتيا هم اسلام دنويو علومو سره تضاد لري، که د اسلام په برکت د ساينس او نويو علومو دروازې پرانيستل شوې؟

د اسلام څخه وړاندې يوناني حکماوو د علومو لورته پاملرنه وکړه، په هغه زمانه کې سقراط ،افلاطون، تاليس بطليموس، ارسطو او نورو دزمکې دسطحې، ګولايي، اجرامِ فلکيه او د نورو په اړه دمشاهداتو او تحقيقاتو په مرسته نظريات وړاندې کړل، او دمعلوماتو يوه ګرانبيه زخيره يې له ځان وروسته پرېښوده، خو ديونيانو وروسته دعيسويت په دوره کې ساينسي او نوي علوم دزوال ښکار شول، په دغه دوره کې عيسوي علماوو نوي نظريات او علوم لغوه وګرځول، دهغو کتابونه يې وسيزل، او په زده کړو يې بنديز ولګاوه، چې په دې سره اروپا او هغه سيمې چې پکې عيسويانو حکومتونه وو، دجهالت په تيارو کې ډوبې شوې، په دا سې زمانه کې چې دعيسايي پادريانو دجبر او استبداد په وجه دعلم و حکمت نوم نښان ورک شو، عين په همدې زمانه کې الله (ﷻ) ددې لپاره چې بشريت دذلت او خواريو بيرون کړي، رسول الله (ﷺ) دنبي او رسول په توګه راواستاوه،

(ﷻ) په مخلوقاتو کې غور اوفکر وکړه، دهغه نښانو ته په غور سره ګوره!

دعظیم الشان قرآن په دې ترغیب مسلمانانو دعلم دخورولو او دهغه دترلاسه کولو لپاره نه ستړیدونکې هلې ځلې وکړې، هم دا وجه ده، چې داتمې عیسوې پیړۍ نیولې تر دیارلسمې پیړۍ زمانه دعلم ،حکمت او اسلامي دوره وه، په دې دوره کې مسلمانانو فلسفه، طب، اوساینس او هیر کړل شوې علوم نه یواځې ژوندي کړل، بلکې په نویو څېړنو سره یې هغو ته نوی جهت ورکړ، "ابوهاشم خالدبن یزید" چې دکیمیا علم موسس ګڼل کېږي، نوموړی دکیمیا او طب لوی عالم و، هغه په دې اړه څو کتابونه لیکلي، البیروني نوموړی دمسلمانانو لومړی حکیم منلی دی، "جابربن حیان" چې دحضرت د "جعفرصادق "(رحمه الله) شاګرد و، هغه د "ګنده تیزابو" او دوسپنې نرمولو او دګازو جوړولو طریقې مندلې دي، "فایرفروف او واټرروف" په نوم کاغذ هم نوموړي ایجاد کړی دی، نوموړي نیږدې سل کتابونه لیکلي دي، ددې مسلمان ساینس پوه کتابونه انګریزې ته ژباړل شوي، یو بل مسلمان ساینس پوه "ابو علی حسن الهشیم" دی، چاته چې اروپایان "ملک الهیزان" وایي،هم داسې څو نور مسلمان سایسدانان تیر شوي چې چې هغوئ دنویو علومو په ایجاد کې سترې کارنامې کړې دي.

"ابن الهیثم، جابربن حیان، ابنِ سینا، المقدسي، البیروني او ابن بطوطه" پشان لویو لویو سانیس پوهانو دنویو څېړنو او تجربو په رڼا کې هغه علوم مندلي چې نن هم دهغو دمثال وړاندې کولو نه نړۍ عاجزه ده داروپا اوسنی پرمختیاوې ددغو مسلمانانو ساینس پوهانو دڅېړنو مرهون منت دي، دهغوئ کتابونه داروپایانو لپاره دلار ښود حیثیت لري، نن هم د "الشفاء او القانون" برخې دهغوئ په نصاب کې لوستل کېږي، ایا داټول دمسلمانانو دمحنت اوزیار نتیجه نده، چې د نن په نوې دور کې دهغوئ دکتابونو نه په استفادي خلک ځانو ته ساینس پوهان وایي.



اسلام چې دنړۍ نه دجهالت تیارې وشړلې، داسلامي تعلیماتو غرض اومنشاء هم داده چې انسان پخپل شاوخوا چاپیریال باندې په غور کولو سره نوي وسایل پیدا کړي، داسلام په راتګ سره په نوي ساینس کې په غور اوتدبر سره مونږ ته نوي وسایلپه لاس راغلل اوهر څومره چې ساینس ترقي کوي، عظیم الشان قرآن خپل معجزانه شان ښکاره کوي، قرآن دخپل اعجاز لپاره دلایل وړاندې کوي، نن که مسلمانان په نویو علومو کې وروسته دي، داد دوئ خپله نیمګړتیا او داسلامي لارښوونو څخه ناخبرې ده، داهیڅکله داسلام له وجې نه؛ بلکې پخپله دمسلمانانو دغفلت او لاپرواهۍ نتیجه ده، چې ددې ټولې څېړنې وروسته دانتیجه په ښه تو ګه لاس ته رازي چې داسلام دښمنو قوتونو په دې دعوه کې هیڅ صداقت نشته چې اسلام ګواکې دنویو علومو سره مخالفت لري.

ژ: شهاب منصور

# داصول فقه او اجتهاد تاریخ

پنځمه برخه: داسلامي نړۍ ثقه عالم دوکتور محمد حمیدالله (رح)

### پوښتنې او ځوابونه

پوښتنه:

ددوه شرعي دلایلو ترمنځ دتعارض په صورت کې مجتهد ته رجوع کوم لورته پکارده اوولې؟

ځواب:

داپرېکړه به هغه (مجتهد) پخپله کوي، ځما رایه داده چې دهغه په مخکې به دوه دلیله وي، دهغه رایه، دهغه ذهن او ضمیر چې کوم لوری قانع کړ، هم هغه حکم به کوي، ددې لپاره کومه ځانګړې قاعده نشته بلکې دا انفرادي څېز دی یو اځې سهولت لټول او په اسانۍ پسې تلل، د تل لپاره غوره او ګټورعمل ندی.

پوښتنه:

دمجتهد لپاره داحکامو په استنباط کې کومه طریقه خپلول پکاردي؟

ځواب: ددې لپاره کولی شي داصول فقه کتابونه ولولي، هلته داجتهاد بحث کې څېړل شوي، چې دهرې مسئلې حکم موندلو لپاره ترټولو اول عظیم الشان قرآن ته رجوع پکار ده، په قرآن کې دنه موندلو په صورت کې حدیث ته رجوع پکار ده، په حدیث کې دنه موندلو وروسته وړاندې چې کوم فقهاء او مجتهدین تیرشوي

یعنې که په دې اړه اجماع مندل کیده هغې ته رجوع پکار ده، که هلته ونه مندل شو، بیا پخپل ذهن، سوچ کول او داسې حکم مندل چې هغه درایه ورکونکي په نظر زیات قوي او دمنلو وړ وي.یعنې دخدای (ﷻ) نه له ډار سره یوځای دهغه حکم را ویستلو کوښښ پکاردی، دانه چې فلانې صیب ماته د حقوق پوه په توګه فیس راکوي له دې وجې دهغه دخوښې سره سم قانون جوړوم، یوحقوق پوه، وکیل باید بې له شکه کوښښ وکړي چې دخپل مؤکل دوسیه وګټي، خو هغه باید هغه څه وړاندې کړي چې هغه دده په رایه حق وي، او دخدای (ﷻ) په وړاندې دقبولیت امکان ولري.

پوښتنه:

امام شافعي دحديثو دتدوين لړ کې ديوه شهادت په قبلولو هم زرور راوړي، خو د اسلامي قانون په زياترو صورتونو کې يو شهادت نه منل کېږي، دا تضاد څنګه حل کيداى شي؟

ځواب:

ځما په نظر ددې ځواب دادى که دقاضي په وړاندې په يوه قضيه کې دفيصلې په اړه کومه مسئله راشي، هغه به دوه شاهدان غواړي خو دحديثو مسئله جلا ده، که دکوم ثقه راوي نه مونږ ته يو حديث رسيدلى. يعنې خبرواحد دى، امام شافعي وايي: قبول دي شي، خو په هغه صورت کې چې کله محکمې ته عريضه وړاندې شي، بيا ددوه شاهدانو شتون ضروري دى، خو په بعض صورتونو کې يواځي ديو شاهد شاهدې هم کافي ده، مثلاً: دماشوم دزيږيدو په اړه د دايې ښځې وينا کافي ده "چې داماشوم دفلانى ميرمنې له خيټې پيدا شو "کافي ګڼل کېږي، ولې هلته نور خلک نه وي، دزنا په قضيه کې څلور شاهدان قرآن پاک ضروري ګرځولي، دوه نه بلکې څلور ضروردي!! لنډه دا چې حديث قبلول جلا دي، او په محکمه کې ديوې قضيې فيصله کولو په وخت کې ددوه شاهدانو شاهدي جلا څيزدى، معتزله فرقه، په خاصه توګه دهغې ډلې مشهور "امام نظام" وايي: هغه حديث مونږ نه قبلوو، کوم چې موږ ته ددوه روايانو له لارې نه وي رسيدلى، خو ماته دامام شافعي ځواب معقول بريښي چې درسول الله (ﷺ) په وخت کې داسې نه کيدل، له دې وجې ضروري نده چې موږ دومره زيات اصرار وکړو، کنه په دې سره به داحاديثو ډېرې لوې زخيرې نه موږ محروم شو، چې دا زمونږ لپاره علمي او ديني نقصان دى، دا کوم تضاد ندى چې حلول يې ضروري وي.

پوښتنه:

ايا دشارع دمنشاء پرته په احکامو کې تغير کيداى شي، مثلاً په قادسيه جنګ کې سعد بن ابي وقاص له لوري دشرابو په څکلو د "ابومحجن ثقفي" معاف کيدل، يا حضرت عمر(رضي الله عنه) د "مزينه قبيلې" ديو سړي په شکايت "حاطب بن بلتعه" غلامانو ته دهغوئ دلاسونو قطع کولو حکم اورول او بيا منسوخول؟

ځواب:

دلومړۍ پوښتنې په اړه يواځې ماته دومره عرض کول پکار دي، چې په نهايتي خصوصي حالاتو کې داسې هم راغلي چې ديوه قانون اطلاق نه وي شوى، يا ځنډول شوى وي، نو په قادسيه جنګ کې يوه عسکر ته دشرابو څکلو په جرم کې د درو وهلو په ځاى په عارضي توګه هغه بندي کړاى شو، له قيد نه دعارضي رخصتۍ په اخيستو سره هغه لاړ په دومره زړورتيا وجنګيده، چې يو مخ دجنګ لورى يې بل مخ بدل کړ، دې سره مسلمانانو ته ګټه ورسيده، کله چې سعد بن ابي وقاص (رضي الله عنه) هغه ته دا وويل ورځه معاف مې کړې، هغه خفه شو، سخته صدمه ورته ورسيده، هغه ويل: غوره به وه چې په درو وهل شم، څو الله (جل جلاله) راته ښنه کړې واى، ماته دالله (جل جلاله) په وړاندې دځواب ويلو لپاره تيار اوسيدل پکار دى، زه توبه کاږم چې بيا به شراب نه څکم! زما په فکر چې دا دسعد بن ابي وقاص فراست و، چې دهغه ضمير يې بيدار کړ، او هغه تدبير داو چې وبښل شي

حضرت عمر(رض) په اړه حديث کې راغلي چې دا هغه تن و، کله به چې په کومه لار تلو، شيطان به هغه نشو تلای، هغه کې دومره بې نفسي وه چې هيڅکله يې هم د ذاتي خواهش پروا نده کړې، هغه د الله، درسول، او د اسلام خدمت کاوه، کله چې قحطي راغله، حضرت عمر(رض) د قحط په زمانه کې د خوراکي توکيو غلا کوونکو لاسونه، قطع کول پريښودل، دا د هغه اجتهادو، په دې باره کې ممکن يوڅوک د منطق او داصولو له مخې اختلاف ولري، خو ځما په اند که هغه د منطق څښتن په دې دور کې واکمن او يا خليفه شي، هغه به هم هغه کوي کوم څه چې حضرت عمر(رض) کول، دا ځما خيال دی، دا نشم ويلی چې د دې سره به تاسو اتفاق لرئ يا نه.

پوښتنه: د اسلامي فقهي دضمني ماخذ "استحسان" مصالح او عرف که لنډه توضيح وکړې؟

ځواب:

د استحسان څخه مراد دا دی، په سملاسي توګه کوم مفهوم چې ستا ذهن ته راځي، د هغه په ځای د هغه عمق اوژورو ته د ښکته تګ کوښښ وکړي، دي ته استحسان وايي، سملاسي ذهن ته په راغلې خبره نه بلکې په هغه عميق اوژور څېز عمل غوره دی، دا استحسان دی، مصالح مرسله ديته وايي: چې په هغه کې د عامه مفاد مصلحت ته په پام عمل کېږي د منطق په ځای د امت په مصلحت باندې، اسانتيا، په هېواد کې د امنيت ټينګولو لپاره کوښښ مصلحت دی، ديته مرسله مصالح وايي، د عرف معنی ده د يو هېواد د خلکو رسم ورواج! دا چې هغه چا جوړ کړی؟ کله جوړشوی؟ مونږ ته په دې اړه علم نشته، کوم چې قانون ندی منسوخ کړی، دا عرف په هر هېواد کې شته، که هندوستان دی که پاکستان، که د عربو قبايل دي که چين دی، افريقه ده که اروپا هر ځای ته چې لاړ شي درته به نوي رسمونه ورواجونه ښکاره شي، دا هغه څه دي چې قرآن ندي منسوخ کړی دی، مونږ يې قبلولی شو، خو که زمونږ په نظر هغه معقول وي.

پوښتنه: ايا دا سمه ده چې په عراق کې د حديثو ذخيره کمه وه، له دې وجې امام ابوحنيفه (رحمه الله) په قياس سره فقهي مسايل مستنبط کړي او په کې د عجمو د مزاج يې ډېر خيال ساتلی اوله دې وجې ورته عامه قبوليت په برخه شوی دی؟

ځواب:

زه د دې خيال منلو ته تيار نه يم، امام ابوحنيفه (رحمه الله) د ډېرې وړاندې زمانې فقيه دی، هغه د هجرت په ۸۰ کال زيږيدلی، کوم کوښښونه چې د رسول الله (ﷺ) له زمانې څخه تر دغه وخته پيل وو، هغه لا بشپړ نه وو، څنګه چې ما وړاندې وويل، او دا کار د متخصصو خلکو وي، د ځينې خلکو علاقه د حديثو سره زياته وه او د ځينو بيا د فقهي لورته ميلان لاره، تر دغه مهاله کتا بونه ليکل شوي نه وو، لکه بخاري او د حديثو نور کتابونه چې نن سبا څنګه يو فقيه په اسانه هغه لوستلي شي، هغه زمانه کې داسې نه وو، که امام ابوحنيفه (رحمه الله) د فقې تدوين ترک کړی وای او د حديثو په تلاش لګيدلی و نو ټول عمر به لګياوو، او فقه به د هغه د قانوني صلاحيت نه محرومه پاته وه، عراق ته احاديث رسيدلي وو، ليکن امام ابوحنيفه (رحمه الله) په ځينو صورتونو کې د حديثو د نشتوالی له وجې اجتهاد کاوه، يوه رايه يې ورکوله ليکن د امام ابوحنيفه (رحمه الله) نه شپيته او يا کاله وروسته

دحدیثو زخیرې دفقهاوو لاس ته ورسیدې، دحنفي مذهب فقهاوو هم د امام ابوحنیفه (رحمه الله) درایې په خلاف رایې ورکړي، اوهغه دحنفي مذهب برخه ګرځیدلي، لکه په ډېرو صورتونو کې دصاحبینو په رایه باندې عمل کیږي خو دیته حنفي مذهب ویل کیږي، دایوه تاریخي واقعه ده چې یو زمانه کې فقهاوو سره دحدیثو علم کم وو، داچې هغوئ دحدیثونه انکار کړی وي یا داویل چې دا دعجمیت او ایرانیت په بنا داسې و، زما په نظر دارایه قطعاً غلطه ده.

پوښتنه: تاوویل ! دقانون بدلوونکی به یا پخپله قانون جوړونکی وي، یابه دهغه نه لوړ شخصیت، حضرت عمر (رض) دقحط په کال دغله لپاره دلاس قطع کولو سزا ځنډول، حال داچې هغه خو نه مقنن و، نه پیغمبرو، اخوجه څه وه؟

ځواب: ځومره چې زه پوهیږم، حضرت عمر(رض) دعظیم الشان قرآن په دې ایت ﴿الامن اضطر﴾ (۲-۱۷۳) باندې استدلال کړی دی، که داضطرار حالت پیدا شي څنګه چې عامه قاعده ده چې: الضرورات تبیح المحظورات داضطرار په حالت کې ممنوعات هم مباح کیږي، یاداچې ضرورت دکوم قانون پروا نه کوي، حضرت عمر(رض) خیال داو چې دقحط په وخت کې داضطرار حالت پیدا کیږي له دې وجې دومره رعایت ورکول پکاردي که داسې یې نه وای کړي ممکن ډېرزیات خلک به مړه وای، او دهغوئ دځان وژنې وبال په حضرت عمر(رض) پریوت، ښکاره ده چې دخدایه ډاریدونکي واکمن لپاره دغسې حالت دزغملو نه وي.

پوښتنه: له اجماع نه مرا دڅه دي، دامت اجماع که دعلماوو اجماع؟ رسول الله (ﷺ) په کوم حدیث کې چې داجماع ثبوت راغلی، په هغه کې دامت اجماع راغلې، ایا دا اجماع ممکن ده؟ ولې مسلمانان دنړۍ مختلفو هیوادو ته خواره شوي، په دې صورت کې کومه اجماع قانوني ګرځي، دعراق دخلکو اجماع که دپاکستان دخلکو اجماع؟

ځواب: فکر کوم که پوښتنه کوونکی به زما په هغه وینا پوه وي کومه چې اوس لږ وړاندې ما وکړه چې اجماع څنګه منظم کیدای شي، نو دپوښتنې یوجز هم بې ځوابه ندی پاته، ما ددې ځواب ورکړی دی، چې دامت اجماع او دعلماوو اجماع دواړه یو شی دي، دامت له اجماع نه دامراد ندی چې دهر جاهل تن څخه دې هم رایه واخستل شي، بلکې ددې معنی داده چې دامت دعلماوو رایه واخستل شي، څنګه چې لږ وړاندې مې وویل، که کوم تن په کوم علم پوهه ونلري هغه دلته ننویستل هیڅکله ګټه نلري، اونه داکار دهغه دپوهې لپاره فایده لري، له دې وجې ددینه مراد علماء دي، او علماء هم هغه علماء کوم چې فقهاء دي، یعنې دقانون اوحقوقو دعلم سره اشناوي، اوتر څه حده پورې پکې تخصص اوتجربه هم ولري، هغوئ ته درایې ورکولو حق شته دی، درایې ورکولو معنی دانده چې رایه به قبلولی هم شي، بلکې هغه رایه ورکوي دویم تن به دهغه په خلاف رایه ورکوي مثلاً مارایه ورکړه چې هغه ناقصه وه تا په هغه درد کوښښ وکړ، اوس دریم تن به فیصله کوي، چې هغه زما رایه قبلوي، اوکه دبل شخص، له دې وجې ماته په رایه ورکولو کې هیڅ بندیزنشته، بلکې درایې په قبلولو کې احتیاط پکار دی، ته خپله پریکړه وکړه چې کومه رایه دامت لپا ره په خیر او دقبلو لو صلاخیت لري السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته.

# گذشتن از اسرائیل حمایت از اوباما

لیکوال: محمود احمد نوید

در حالیکه جنگ اسرائیل علیه فلسطینی های ساکن در غزه همچنان به شدت جریان دارد و باشندگان مظلوم فلسطینی، از زمین و هواء آماج حملات ددمنشانهٔ رژیم دژخیم اسرائیل قرار می گیرند؛ متاسفانه دنیای کفر در کنار اسرائیل قرار گرفته و بجای محکومیت کشتار فلسطینی ها توسط اسرائیل، مجاهدین فلسطینی را محکوم کرده که چرا بالای شهرهای اسرائیلی موشک پرانی می کنند؟

در تازه ترین موضع گیری ها نسبت به بحران پیش آمده در غزه، موضع گیری بارک اوباما رئیس جمهوری امریکا بیش از هر چیز دیگری بر زخم مسلمانان نمک پاشید و کینهٔ درونی دشمنان سرسخت اسلام را برملا ساخت و نشان داد که واقعا: "الکفر مله واحده" کفر ملتی یکپارچه است؛ به نقل از منابع خبری، "اوباما در کاخ سفید به خبرنگاران گفت روز جمعه، ۱۸ جولای، با بنیامین نتانیاهو، صدر اعظم اسرائیل تلفنی صحبت کرده و به او اطمینان داده که دفاع از کشور، حق اسرائیل است... به گفتهٔ رییس جمهوری امریکا هیچ کشوری نمی‌تواند تحمل کند که به داخل مرزهایش موشک انداخت شود ... "

آری! این سخنان شخصی است که برندهٔ جایزه صلح نوبل است و دفاع از بشریت مظلوم و ایجاد صلح و آرامش جهانی در اولویت کاری اش قرار دارد!

این سخنان شخصی است که سنگ دفاع از مظلومان جهان را به سینه می زند و ادعا می کند که کمک همه جانبه به بشریت مظلوم در دستور کارش قرار دارد!

این سخنان شخصی است که رهبران افغان نمای افغانستان، در ماجراجویی های عوام فریب خود، به اسم انتخابات و دیگر پروسه های غربی به حکمیت و فیصلهٔ او رضایت می دهند و او را به اصطلاح منجی کشورشان می دانند!

این سخنان اوباماست شخصی که متاسفانه بسیاری از رهبران جهان اسلام، به دست دادن و همصحبت شدن با وی افتخار می کنند و در کنارش عکس یادگاری می گیرند!

این سخنان اوباماست کسی که سالهاست افغانستان عزیز را در استعمار و استثمار خویش قرار داده و با تبانی چند تن غلام وطن فروش خود در داخل، دم از ایجاد صلح و آرامش و ایجاد فضای پیشرفت و

دیموکراسی در افغانستان می زند و غلامان و فریب خوردگانش را با سخنان شیطان صفتانهٔ خویش خام و رام می کند !

**اوباما می گوید در حملات جاری، اسرائیل از خود دفاع می کند و این حق آن کشور است و با نشان دادن این چراغ سبز، بر تمام جرم و جنایت های هولناک اسرائیل مهر تایید می گذارد و به قِسمی کشته شدن، آواره و بی سرپناه شدن مردم فلسطینی را هم حق فلسطینی ها می داند و از مرگ صدها فلسطینی و پرپر شدن و بال بال زدن اطفال و بی گناهان فلسطینی لذت** می برد !؟!

کشتاری که امروز در غزه فلسطین جریان دارد از نگاه دشمنان خدا و رسول، بخاطر دفاع از یهودی های اسرائیلی حق فلسطینی هاست؛ یعنی مسلمانان در غزه باید کشته شوند تا یهودی های اسرائیل زنده بمانند ؟؟؟

سازمان نام نهاد بین الملل هم در سکوت مطلق و مرگبار به سر می برد و جز نظاره کردن کشتار فلسطینی ها و تجاوز یهودی ها به اراضی مسلمانان در غزه، هیچ کاری نکرده و نمی تواند که انجام بدهد ؛ چون این نهاد نام نهاد هیچ اختیاری از خود ندارد ؛ و وقتی ارباب شان می گوید اسرائیل از خود دفاع می کند و این حقش هست، ملل متحد چارهٔ جز سکوت به نشانهٔ رضایت ندارد !

در حالیکه تا امروز که قریب به دو هفته می شود حملات وحشیانهٔ اسرائیل بالای غزه جریان دارند نتیجهٔ این جنگ نا برابر تا اکنون بس تکان دهنده و ناگوار بوده است؛ شهدای فلسطینی از مرز ۳۵۰ نفر گذشته و زخمی ها و مجروحین بی شماری برجای مانده ، بیش از چهل هزار نفر آواره گشته وصدها خانه تخریب گردیده اند و ... این ارقام بلند قربانی از جانب فلسطینی های مظلوم بخاطر حقی است که اوباما برای اسرائیل به رسمیت می شناسد ؟!؟

انا لله و انا الیه راجعون... !

چه سخت و طاقت فرسا است شنیدن و تعقیب اخبار لحظه به لحظهٔ که از فلسطین گزارش می شوند ؛ در حالیکه فلسطینی ها فقط بخاطر اسلام، فلسطینی بودن و عزت خواهی و استقلال طلبی قربانی می دهند و دشمنان، هرگز قائل به این حق فلسطینی ها نیستند و در گفتار و کردار زشت خود ، در کنار جنایتکاران بین المللی و دشمنان بشریت می ایستند... !

سخنان اوباما یکبار دیگر چهرهٔ واقعی دشمنان اسلام را روشن ساخت و به دنیا نشان داد که بانی و حامی تروریسم جهانی و بین المللی چه کسانی اند !

آیا اوباما و اسرائیل که به خاطر حفظ منافع دولت و مردم خود دست به هرجنایت بشری می زنند و از ارتکاب هیچ عمل وحشیانه و ضد انسانی دریغ نمی ورزند تروریسم و حامی آن هستند و یا مردمی که گاه با آه و ناله و گاه با سنگ و چوب و گاهی با چند موشک که نسبت به تشکیلات نظامی و مورد استفادهٔ دشمن خیلی در سطح پایین قرار داشته؛ دفاع می کنند ؟؟؟

عجیب است در دنیای امروز حملات زمینی و هوایی و استفاده از تشکیلات مدرن نظامی علیه فلسطینی های مظلوم و کشتار فاجعه آمیز و نسل کشی بی سابقه توسط ظالمان اسرائیلی تروریسم جهانی دانسته نمی شود ؛ اما از آنطرف طفلان معصوم فلسطینی که بی خبر از همه چیز در آغوش پدر و مادرهای شان به طرز نهایت فجیع به شهادت می رسند و حتی طفل شش ماههٔ فلسطینی که در گهوارهٔ خویش در خواب کودکانه به سر می برد تروریسم دانسته شده و از بین بردن آن حق یهود اسرائیلی خوانده می شود ... !؟!

# په ۲۰۱۳ کال کې




# قوماندانان

میرنسادات

د افغانستان اسلامي امارت د دعوة او ارشاد ،جلب او جذب کمیسیون ویاړي چې هره میاشت یې په هځود هیواد په مختلفو ولایتونو کې ګڼ شمېر قوماندانان او افراد دیرغلګرو ځواکونو او دهغوی دګوډاګي رژیم له لیکو څخه راوزي دغه رنګه دیادشوي کمیسیون دکاراوزیارله برکته په دې وروستیو کي دهیواد په ګڼوولایتونو کې دبیلابیلو قشرونوله دولتي او غیردولتي کارمندانو سره اړیکي نیول شوي ،اودګران هیواددازادۍ لپاره یې همکاري راجلب شوې چې خوراښې پایلې ترې په لاس راغلي دي.

په تېرکال کې چې کوم قوماندانان ،قومي مشران اوبانفوده اشخاص دکابل دشوړیدلي رژیم څخه راجلاشوي اوداسلامي امارت سره یوځای شوي نومونه یې په لاندي ډول دي

د۲۰۱۳کال دجنوري دمیاشتي په بیلابیلوورځو کي ددعوة ارشاد ،جلب اوجذب کمیسیون مسؤلینو ددایکنډي ،هرات ،فاریاب ،غزني ،غور ،نیمروزاوسرپل ولایتونو کې دقومي مشرانو ،علماءکرامو ،معلمینو ،محصلینواونورخلګوسره دلیدنو په ترځ کي داسلامي امارت حقه داعیه وړاندي کړه ،اونوموړي یې وهڅول چې دمجاهدینوسره لانېه همکاري وکړي ترڅوهرڅه ژرموله ګران هیوادڅخه یرغلګرځواکونه وتښتي ،دظلم ،فساداو ناامنیو تغرټول شي اوپرځای یې دکونډو ،شهیدانواو ځوریدلو هیوادوالودارمانونوسره سم یواسلامي ،خپلواک اوسوکاله نظام دلوی خدای جل جلاله په نصرت اوستاسي په ملاتړرامنځته شي .مخاطبینوداسلامي امارت داعیې ته لبیک ووایه اود مجاهدینو سره یې دهراړخیزي همکارۍ ژمنه وکړه.

دجنوري په ۱۱مه ددعوت اوارشادکمیسیون اړوندوڅانګو په میدان وردګ ،هلمند ، قندهار ، شبرغان ،بدخشان، بادغس کي د۱۰تنوقوماندانواویوشمېرعسکروسره دارتباط اودعوت په پایله کي ۲۸ نفره دکابل له فاسدي اداري راجلا اوداسلامي امارت سره یوځای شول.

دجنوري په۲۱مه نیټه دزابل ولایت دنوبهار ولسوالۍ کي قوماندان محمد نعیم له یوه رینجر ،یوه میل سقیل ،یوه میل کلاشنکوف اویوی غټې مخابرې سره د اسلامي امارت له مجاهدنو سره ملګری شو.

دجنوري پر۲۳مه دنیمروزولایت دخاش رود ولسوالۍ کي قوماندان عبدالقدوس او۲تنه عسکرله۱ دهشکې،۱ راکیټ ،۲ ثقیل ،۲چرکي هوانونو ،۸ میله کلاشنکوفو او۱ رینجرموټرسره له ګوډاګۍ رژیم څخه بیل اود اسلامي امارت سره یوځای شول.

داپریل د میاشتي په اوږدو کي داروزګان ،دای کنډي ،غزني او هرات ولایتو نو داهل تشیع او هزاره قومونوپه استازیتوب په سلهاووقومي مشرانواوبانفوذه اشخاصوداسلامي امارت له مسؤلینوسره ملاقاتونه ترسره کړل ،دوی وویل چي په هیڅ ډول به دکرزي داجیررژیم سره همکاري ونه کړي ځکه دوی چي دادولس کاله کومي خبري کولې یوازي اویوازي یې دولس دغولو په موخه اودخپلو جیبونو ډکولو په خاطرتکرارولې .دوی اسلامي امارت ته

ډاډورکړچ ي:دهیوادخپلواکۍ ترلاسه کولولپاره به داسلامي امارت له مجاهدينوسره خپلي بشپړي همکارۍ ته ادامه ورکړي اودیرغلګروخواکونواودهغوی دافغان ملاتړوپرضدبه خپل جهادته لاپراختیاورکړي ترڅوژرترژره زموږله ويارلي هيوادڅخه داشغال،فساداوناامنيو کرغیړن ټغرټول شي اوپرځای يې دالله تعالی قانون حاکم شي دوی داسلامي امارت سره وعد ه وکړه چي دخپلومجاهدينوورونوسره به اوږه پراوږه ديرغلګرواودهغوی دمزدورانوپرضدجهادکوي. داسلامي امارت مسؤلينودوی ته ډاډورکړچي ستاسي دسراومال دحفاظت ترڅنګ به دخپلوسرونو په بيه ددين ددښمنانواودخاوري دغاصبينوپه وړاندي اتلواله مبارزه کوي ترڅوموهیوادخپلواک اودشهيدانو دارمانونوسره سم يوداسي نظام رامنځته کړوچي تبعيض اوتعصب څخه پاک او دټولواقواماواقشارونمايندګي وکړي.

دمئ پر۲۲مه دکندهارولایت غورک ولسوالۍ کي دقوماندان اغامحمدپه مشري ۵تنه عسکر له مجاهدينوسره يوځای شول

دمئ پر۲۷مه داروزګان ولایت دخاص اروزګان ولسوالي دسيرودسيمي دهزاره قوم شپږونفرومشرانو اونمايندګانو له اسلامي امارت څخه مکمل ملاتړ اعلان کړ،نمايندګانو نومونه په دې ډول دي ،عبدالعلي ولد ارباب وحيد ،سخي دادولد حسين ،علي جان ولد غلام حسين ،جمعه خان ولد محمدرضا ، غلام نبي ولدمحمدموسی ،محمدعيسی ولدميرزاحسين دغومشرانو دخپل قوم مکمل پيوستون له اسلامي امارت سره اعلان کړ.اوداسلامي دامارت مشرتابه ښه راغلاست ورته وواییه اوله خپله اړخه يې دپوره همکارۍ وعده ورسره وکړه.

دجون پر۳مه د لغمان ولايت د دولت شاه ولسوالۍ کي د اربکيانو مشهور قوماندان سلا جان سره له ۵ تنه ملګرو ، د اسلامي امارت له مجاهدينوسره يوځاي شو.

د جون پر ۴ مه د میدان وردګ ولایت د نرخ ولسوالي په آقچې سيمه کي دقوماندان نورعالم په مشرۍ ۹ تنه عسکر د اسلامي امارت له مجاهدينو سره يوځاي شول.

دجون پر۷مه دد پروان ولايت د سياګرد ولسوالي کې د قوماندان عبدالسلام په ګډون ۱۵ تنه عسکر د اسلامي امارت له مجاهدينوسره يوځای شول.

دجون پر۱۱مه د نورستان مرکزپارون ته نژدې د يوې پوستې قوماندان(عبدالقادر) د اسلامي امارت مجاهدينو سره يوځاي شو.

دجون پر۱۱مه د بدخشان ولایت په کوف اب کي قوماندان عبدالحميد دخپلوساتونکو په ګډون له محاهدينو سره يوځاي شو.

دجون پر۱۲مه د بد خشان ولایت په جرم ولسوالۍ کي دقوماندان په مشري ۳۵ تنه عسکر د اسلامي امارت مجاهدينو سره يوځاي شول.

دجون پر۱۲مه دبغلان ولايت په مرکز کي قوماندان ظاهر له ۸ تنو عسکرو سره دامارت دمجاهدينوسره ملګري شو.

دجون پر۲۴مه د کندز دخان اباد ولسوالۍ دملغرې په سيمه کي د قوماندان نظرپه مشري ۲۰ پوليس له مجاهدينوسره يوځای شول.

دجولای پر۱۲مه دخوست د ولايت د نادرشاه کوټ ولسوالۍ د قومي شورا غړی شهبازخان له اسلامی امارت سره يو ځای شو.

دجولای پر۲۲مه قوماندان ملاميراغا ۲عسکروپه شمول داسلا مي امارت سره ملګر ي شو.

دجولای پر۲۴مه دبد خشان ولايت د کوف آب ولسوالۍ کې يو مشهورقوماندان (محمدعطا) داسلامي امارت سره يوځای شو. نوموړي ۱ پيکاماشيندار، ۱ راکټلانچر، ۱ توپ انداز، ۱ کلاشنکوف، ۸ صندوقونه غټي او وړې مرمۍ اوګڼ نورمهمات مجاهدينوته تسليم کړل.

دجولای پر۲۷مه د لوګرولایت مرکزاړوندسيمه کي د اردو يوتن قوماندان(محمدآغا) له مجاهدينوسره يوځای شو.

داګست پر۲۰مه دارزګان ولایت دهراودولسوالۍ کي ۲ تنه قومي مشران( ملک عبدالشکور خان اومیر عبدالرازق )له فاسدی اداری راجلاشول اوداسلامی امارت ملګری شول.

داګست پر۲۲مه دهرات ولايت دادرسکن ولسوالی کي يوقوماندان له يوه عراده رينجر موټر ،يوه ميل سقيل ماشيدار،پنځه ميله کلاشنکوفواونوروم‌هماتوسره مجاهدينو ته تسليم شو.

داګست پر۲۳مه قوماندان شفيع له ۳۰ کسانوسره دميدان وردګ ولايت دجلريز ولسوالۍ دتنګی په کلي کي داسلامی امارت له مجاهدينو سره ملګری شو.

داګست پـر۲۵مـه داروزګـان ولایـت دمرکزا ړونـد۵تنـه عسکرددووقوماندانا نو پـه شمول داسلامي امارت له مجاهدينو سره یوځای شول.

دسپتمبرپه ۲مه دهلمند دموسی قلعه ولسوالی کې قومي مشرمحمدجان خان چي داربکيانومشر وو دحقائقو پـه درک کولو له فاسدی اداري راجلااودمجاهدينوسره ملګری شو.

دسپتمبرپه ۱۸مه نیته دسرپل ولایت دکوهستاناتو مشهور او بانفوذه قوماندان اودولسي جرګې غړی قاضي عبدالحي دخپلو افرادو پـه ګډون دافغانستان داسلامي امارت لـه مجاهدينو سره یوځای شو ،نوموړي داسلامي امارت سره خپل هراړخیزملاتړاعلان کړاوژمنـه يـې وکـړه چـې داسـلام اوهیواددخـارجي اوداخلـي دښمنانوپرضدداسـلامي امـارت ترمشـري لانـدي مقـدس جهادتـه ادامــه ورکــوي.دمجاهدينوســره دقاضــي صــاحب یوځــای کیدلوپردښمن ډیرمنفي اغیزوکړ.دنوموړي سره الاماره ویبپاڼي تفصيلي ویډیويي مرکه کړې چي خوراپـه زړه پوري واقعيتونه يې روښانه کړي دي.

دنومبرپه ۲۷مه له بدخشان ولایت پـه یمګان ولسوالی کې قوماندان عاشورد ۱۲ تنو عسکر پـه ملتیاداسلامي امارت سره یوځـای شـو.قوماندان محمدعاشـور پـه هغـه غونـډه کـې چـې لـه مجاهدينو سره د ده د یوځای کیدو پـه ویاړ جوړه شوي وه وويل: زما ایمان نور اجازه رانه کړه چې د یرغلګرو پـه وړاندې آرام کښېنم، زه وعده کوم چې نور بـه د اسلامي امارت تر چتر لاندې د یرغلګرو امریکایانو او د هغـو لـه خرڅو شـویو غلامـانو سره کلکـه جهـادي مبـارزه کـوم.د مجاهدينو لخـوا هـم نومـوړي تـه د راتـګ او نیـک احسـاس لـه امله ښه راغلاست وویـل شـو او د هر راز همکـارۍ او اکمالاتو ژمنه ورسره وشوه.

داکتوبرپـه لومړۍ نیټـه پـه پکتیکـا ولایت کـې دقوماندان عبدالرحمن په مشري ۱۱۰تنه عسکرچي په اردواومحلي پولیسوکي يې کارکاوه د اسلامي امارت له مجاهدينو سره یوځای شول.

اکتوبرپه ۴مه د پکتیکا ولایت دجاني خیل ولسوالۍ دشورا غړی شیرخان دمجاهدينوسره یوځای شو.

داکتوبرپه ۵مه دپکتیکاولایت اورمـای کي قوماندان اشرف خان او۱۲تنه پولیس يې له مجاهدينو سره یوځای شول.

داکتوبرپه ۱۳مه د پکتیکا ولایت د جاني خیلو ولسوالۍ کي ۲ تنــه دکابـل اداري لوړپـوړي کارمنـدان (حـاجي میـوه خـان ) د انکشـاف دهـات مـدیر او (حـاجي سـتار ) د شـوري غـړي لـه مجاهدينوسره یوځای شول.

داکتوبرپـه ۷مـه ننګرهـار پچیراګـام کې داربکیانو سرګروپ مولاګل له مجاهدينو سره یوځای شو.

داکتوبرپـه ۱۸مـه دننګرهـارولایـت پچیراګـام او د سـپین غـره ولسوالیو کي د اربکیانو دمشهور قوماندان خان محمد پـه ګډون ۷ تنه عسکر له مجاهدينوسره یوځای شول.

داکتوبرپه ۹مه دجوزجان ولایت د قوشتیپې ولسوالۍ کي قوماندان اعظم له مجاهدينوسره ملګری شو.

دډسمبرپه ۲۲مه دفاریاب په ولایت دګرزوان په ولسوالۍ کي قومانـدان ملامحب الله مجاهـد لـه ۲۰ تنـو مسـلحو ملګـرو سـره داسلامي امارت له مجاهدين سره ملګري شو.

دډسمبرپـه ۲۷مـه دوه تنـه دکابـل اداری لـوړ رتبـه کـار منـدان هریوقومانـدان خـال محمـد دفاریـاب ولایـت دګـرزوان ولسـوالۍ ،قوماندان فیروز دشیرین تګاب ولسـوالۍ اوسیدونکی اسلامي امارت ته تسلیم شول.

داسلامي امارت سره یوځای شووټولوکسانوته دافغانستان اسلامي امارت ددعوت ،ارشاد ،جلب اوجذب کمیسیون مشرتابه هرکلی ووایه اوددوی همداکاريې چي دکابل اداري سره يې پریکون وکړډیروستایه ،دکابل رژیم څخه راوتلي بااحساسه هیوادوال پـه جایزو اوانعامونوسره ونازول شول اودسراومال دساتني تضمين ورکړل شو.



# تأسیس حکومت الهی

علامه شبلی نعمانی

سپیده ی صبح پس از تاریکی شب نمودار می شود و هنگامی که ابر سیاه و تاریک کنار می رود، خورشید تابان به همه جا نور افشانی می کند.

جهان آکنده از ظلمتها و تاریکی های ظلم و ستم بود که ناگهان صبح سعادت طلوع کرد و آفتاب حق و صداقت پرتو افکنی را اغاز نمود وملت عرب که پرستش خدای یگانه را شروع کرده بود، تحت حاکمیت یک حکومت قرار گرفت. خداوند متعال هم وعده فرموده است)). وعد الله الذین آمنوا منکم و عملوا الصالحات لیستخلفنهم فی الارض کما استخلف الذین من قبلهم و لیمکنن لهم دینهم الذی ارتضی لهم و لیبدلنهم من بعد خوفهم امنا یعبدوننی لایشرکون بی شیئا و من کفر بعد ذلک فاولئک هم الفاسقون)) (نور: ۵۵)، خداوند به مؤمنان و نیکو کاران شما وعده داده است که آنان را جانشین سازد در زمین همچنان که جانشین قرار داد آنان را که پیش از آنها بودندو دینی را که برای آنان

بر گزیده سیطره دهد و ترس آنان را به امنیت تبدیل کند. آنان فقط مرا می پرستند و چیزی را با من شریک قرار نمی دهند و هر کس بعد از این ناسپاسی کند پس آنان از گروه فاسقان اند. حکومت الهی و استخلاف در زمین، از لوازم ضروری نبوت نیست، ولی هنگامی که دعوت الهی با دیوارهای سیاست کشوری اصطکاک پیدا می کند ویا وقتی اصلاحات و امنیت کشور در محاصره ی فساد و نا امنی، هرج و مرج قرار می گیرد، پیامبر الهی در هیبت ابراهیم و موسی نمودار می شود، و ملت و مملکت را از بردگی و غلامی نمرودها و فرعونها رهایی می بخشد.

در میان پیامبران، عیسی و یحیی نیز بوده اند که هیچگونه سهمی از حکومت نداشتند. موسی، داود و سلیمان نیز بودند که سرنوشت ملتها و مملکتها در اختیار آنان قرار داشت. ولی پیامبر گرامی اسلام حضرت محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم با هر دو گروه مشابهت کامل داشت. خزانه های عرب در اختیار و تصرف ایشان بود. اما در کاشانه ی نبوت نه بستر نرمی و نه غذای چربی وجود داشت و نه بر بدن مبارک ایشان خلعت شاهانه ای و نه در جیب و صندوقهای ایشان درهم و دیناری بود. در حالی که عظمت و ابهت دربار ((قیصر)) و ((کسرا)) در بارگاهش نمایان بود، وی به عنوان یتیم مکه، شخصیتی ساده پوش و مانند فرشته ی معصوم آسمان به نظر می رسید. خداوند متعال هدف و مقصود اصلی از حکومت اسلامی را در قرآن کریم چنین بیان می فرماید:

((اذن للذین یقاتلون بانهم ظلموا و ان الله علی نصرهم لقدیر، الذین اخرجوا من دیارهم بغیر حق الا ان یقولوا ربنا الله و لولا دفع الله الناس بعضهم ببعض لهدمت صوامع و بیع و صلوات و مساجد یذکر فیها اسم الله کثیرا و لینصرن الله من ینصره ان الله لقوی عزیز، الذین ان مکنهم فی الارض اقاموا الصلوة و اتوا الزکوة و امروا بالمعروف و نهوا عن المنکر و لله عاقبة الامور)) (حج: ۴۱-۴۰-۳۹) فرمان جهاد داده شد به کسانی که کفار با آنان وارد جنگ شدند چون مورد ظلم قرار گرفتند و همانا خداوند بر یاری آنان تواناست. این فرمان به آنان داده شد که به ناحق از خانه هایشان بیرون رانده شدند صرف به این جرم که می گفتند پروردگار ما الله است و اگر خداوند شر بعضی از انسانها را توسط بعضی دیگر دفع نمی کرد، البته معابد، کلیساها، کنشت ها و مساجد زیادی که نام الله در آنها یاد می شد، تخریب می گردید و خداوند اکیدا یاری خواهد کرد کسی را که دین او را یاری کند همانا خداوند توانا و غالب است. [آن مؤمنانی که خدا بدیشان وعده ی یار و پیروزی داده است] کسانی هستند که هر گاه در زمین ایشان را قدرت بخشیم، نماز را بر پا میدارند و زکات را می بردازند و امر به معروف و نهی از منکر می نمایند و سرانجام همه کارها به خدا بر می گردد. در این آیات به طور اجمال گفته شده که جنگها در اسلام

چگونه و به چه منظوری آغاز شد؟ اهداف و مقاصد حکومت اسلامی چه بود؟ وظایف استخلاف فی الارض چیست و با سایر حکومت های دنیوی در چه اموری فرق دارد؟ سر انجام، امنیت و آرامش در تمام سرزمین جزیرة العرب حاکم شد. معضلات سیاسی ونابسامانی های اجتماعی از بین رفت. در اکناف و اطراف مملکت، داعیان و مبلغان اسلام منتشر شدند. هیاتهای نمایندگی قبایل از مناطق و سرزمین های دور به بارگاه نبوت حضور می یافتند. فتح مکه، روز عظمت و اقتدار اسلام بود که در رمضان سال هشتم هجری به وقوع پیوست. بعد از آن، رسول الله صلی الله علیه وسلم در میان قبایل، افرادی را تعیین فرمودند تا زکات و صدقات را گرداوری کنند. ولی ارکان و پایه های خلافت الهی در اواخر سال دهم هجری، نزدیک به زمان حجة الوداع، تکمیل و مستحکم شد.

گر چه از دید ناقص و ناآشنای اروپا، این دوران از زندگی رسول الله صلی الله علیه وسلم دوران ریاست و سلطنت ایشان و مظهر یک زندگی سلطنتی به نظر می رسد، لیکن برای آشنایان و واقع بینان، حقیقت واضح و روشن است که سید الاولین و الآخرین، چه گونه در لباسهای کهنه و پاره، در کوچه های مدینه در صف فقرا و مساکین و غلامان پدیدار می شد و در حالی که بی نیاز از تاج و تخت، مستغنی از قصر و ایوان، بی پروا از حاجب و دربان، دور از خدم و حشم و مال و منال بود، بر دلها حکومت می کند. در حکومت ایشان نه پلیسی بود و نه مراکز و دفاتر سازمان یافته ای، و نه پست های حکومتی زیادی و نه هیات وزیران ونه امرا و قضات جداگانه. مسوولیت همه کارها با خود ایشان بود با وجود این، وی میان خود و عامه ی مسلمین به اندازه ی یک مو فرق و امتیاز قایل نمی شد. در دادگاه عدالت وی، فاطمة الزهرا رضی الله عنها جگر گوشه ی نبوت و یک مجرم عادی، برابر بودند. (۳) مقصود اصلی از بعثت پیامبر گرامی صلی الله علیه وسلم دعوت الی الله، اصلاح اخلاق و تزکیه ی نفوس بود. سایر مسئولیتها ضمنی و جنبی بودند. روی این اساس، حضرت محمد صلی الله علیه وسلم تاحدی به برپایی تشکیلات حکومتی پرداختند تا امنیت لازم برای دعوت توحید فراهم شود و موانع و مشکلات رفع شود.

نظم و مقررات حکومت اسلامی رسول الله صلی الله علیه وسلم به سن شصت سالگی رسیده بودند، با این وصف، تمام امور حکومت را در آن سن بالای خودشان انجام می دادند و بر آنها نظارت داشتند مانند: تعیین والیان وعاملان، تعیین مؤذنان و ائمه جمعه و جماعات، تعیین نمایندگان برای جمع آوری اموال زکات و مالیات، انعقاد پیمان صلح با اجانب، تقسیم اموال میان قبایل مسلمان، ترتیب و نظم سپاهیان اسلام، رسیدگی به دعاوی، رفع اختلافات و جلوگیری از جنگهای داخلی، پذیرایی از هیاتهای نمایندگان و مذاکره با آنان، صدور فرامین لازم، ترتیب و انتظام امور افراد نو مسلمان، افتا در مسایل شرعی، اجرای تعزیرات در جرائم، نظارت بر مناصب و عهده داران بزرگ مملکتی و کسب اطلاع و حساب رسی از آنان. افراد متعددی از صحابه به عنوان والی به ولایات دور دست تعیین و اعزام شده بودند ولی وظایف و مسئولیتهای مدینه و اطراف آن شخصاً بر عهده آن حضرت صلی الله علیه وسلم بود. بار بزرگ وظایف و مسوولیتهای خلافت الهی بر دوش آن حضرت سنگینی می کرد و ایشان به لحاظ جسمی بسیار ضعیف شده بودند. در روایات مذکور است که ایشان در اواخر زندگی نماز تهجد را در حالت نشسته می خواندند و این از عوارض ضعف جسمی بود. این ضعف جسمی نتیجه ی چه امری بود؟ پاسخ این سوال را از زبان مبارک امیر مؤمنین حضرت عایشه رضی الله عنها بشنویم زیرا وی بزرگ ترین تصویر گر و ترجمان اعمال و زندگی آن حضرت محمد صلی الله علیه وسلم است: ((ان عبدالله بن شقیق قال سالت عائشة افکان یصلی قاعدا؟ قالت حین حطمه الناس(۴))) عبدالله بن شقیق می گوید: از حضرت عایشه پرسیدم: آیا حضرت محمد صلی الله علیه وسلم در حال نشسته نماز می خواندند؟ وی اظهار داشت: آری! هنگامی که مردم ایشان را خسته و نحیف کرده بودند. فرماندهی در جهادامیر و فرمانده سپاهیان اسلام در غزوه ها و سرایای کوچک از بزرگان صحابه تعیین می شد، اما در جنگ های بزرگ، قیادت و فرماندهی سپاه را آن حضرت صلی الله علیه وسلم شخصا بر عهده می گرفتند. چنانکه در غزوه ی بدر، احد، خیبر، فتح مکه، و تبوک خود ایشان فرماندهی را بر عهده داشتند. دلیل این کار، جنگ، فتح و پیروزی نبود بلکه نظارت بر نظم و انضباط و مسائل اخلاقی و روحی سپاهیان بود. چنانکه در مسایل بسیار جزیی به سربازان اسلام تذکر می دادند که موارد تذکرات صریحا در کتب احادیث مذکور است و قوانین جنگی اسلام در پرتو همین موارد، تدوین گردیده است.

# پرغزې د اسرائیلو وحشي یرغل

## او د نړۍ د شرم نه ډک دریځ

حسن مومند

پرغزې د اسرائیلو د کابودوه اوونیو راهیسې د روانو وحشي بمباریو او ځمکنو حملو په ترڅ کې نن د جولای په ۲۴ مې نېټې د ملګرو ملتونو پر یوښوونځي د اسرائیلي فوځونو د حملې په نتیجه کې ۱۵ نور مظلوم فلسطینیان هم شهیدان شول چې پدې سره د شهیدانو شویو فلسطیني مسلمانانو شمېر له ۷۲۰ واوښت.

د وحشي بمباریو نه پس د ځمکنیو بریدونو په لړکې د جولای د ۲۰ مې نېټې ځمکنۍ حمله ډېره خونړۍ وه چې د کوچنیانو او مېرمنو په شمول پکې ۹۰ مظلوم فلسطینیان شهیدان او ګڼ شمېر ټپیان شوي و ؛ ددې حملې نه پس د اسرائیلو د روانو هوایي او ځمکنو بریدونو په ترڅ کې د شهیدانو شویو شمېر ۴۲۵ او د ټپیانو شمېر له ۲ زرونه اوښتی و ؛ د ملګرو ملتونو سرمنشي چې منځني ختیځ ته په سفرو د قطر په پالازمېنې دوحه کې یې دا حمله وغندله او دایې یو بې رحمانه عمل وګڼلو.

اسرائیلي دولت منلی ده چې پدې برید کې یې ۱۳ عسکر وژل شوي دي نو ځکه د امریکا ولسمشر بارک اوباما د سکوت روژه ماته شوه او د اسرائیلي عسکرو تر څنګ یې د فلسطینیانو په وژل کېدو هم خواشیني څرګنده کړه ؛ د اسرائیلو لومړي وزیر بن یامین نتن یاهو سره یې ټیلفوني تماس ټینګ کړ او ورته یې ډاډ ورکړچې د دوارو اړخونو ترمنځ داوربند د رامنځته کولو لپاره به ډېر ژرد باندنیو چارو وزیر جان کیري مصر ته واستوي.

د اسرائیلي فوځ لوی درستیز ددې عملیاتو نه پس وویل ,, دا د سختو عملیاتو پیل دی ؛ پر اسرئیلو د حماس دراکټي بریدونو ترودرولو او د حماس د ظرفیتونو د له منځه وړلو پورې به دا عملیات دوام ولري ؛ شاید اسرائیلي فوځیان مخې ته سختې شېبې ولري ،،

کوچنۍ عزه چې ایله د ۶ نه تر ۱۲ کیلو مترو پورې پلنوالی او تر ۴۲ کیلومترو پورې اوږدوالی لري دروژې پدې مبارکې میاشت کې د اسرائیلو اوسنو وحشي بریدونو پکې قیامت ته ورته فضا جوړه کړیده ؛دهستوګنې په ټولو سیمو یې اسرائیلی طیارې په پرله پسې ټوکه درانده بمونه غورځوي اود دروژه ماتي پرمهال له ټانکونو او سمندرې جازونو نه په توغندو ویشتل کېږي ، د دولتي ودانیو او تجارتي مرکزونو تر څنګ بې شمېره کورونه د ځمکې سره هوار شویدي ، ددې کرښودلیکلو تر دمه د اسرائیلو اوسني روان خونړي یرغل کې د مېرمنو ، کوچنیانو او بوډاګانو په شمول ۷۲۰ نه زیات مظلوم فلسطینیان شهیدان شوي او د سختو ټپیانو شمېر د ۲ زرونه اوښتی ، دغزې

روغتونونــه دټپیانونــه ډک دي او دطبــي مرســتو د نــه رسېدو شکایتونه مخ په ډېرېدو دي.

غــزه چې دتېرو کـابو ۹ کلونـو راهیسـې د اسـرائیلو تـر محاصره لاندې وه او دغزې ټولې لارې اسرائیلو تړلې وې او ســخته ځارنــه یــې کولــه پکــې هســې هــم د خــوراکي مـوادو ، دواګانو او دا ړتیاوړ نوروځېزونو سخت قلت و ،دمحمد مرسي دواکمنۍ پرمهال مصر دغزې مسلمانانو پرورانديځ خپلې ځمکنۍ لارې پرانستې وې چې له امله یې په غزې کې دهر څه فراخي وه خو پر مصر دکودتایې نظام دمسلط کېدو نـه پس د سیسي لـه لورې دالارې د اسرائیلو دخوشالولو په موخه بیا کلکې وتړل شوې چې اوس دغزې نېږدې دوه میلونه او سېدونکي ټول دا ړتیا وړځېزونـه دمصـر درفح ښـارنه دهغــه تونلونـو لـه لارې راوړي کوم چې دمصر او غزې ترمنځ دکانکریټي دېوال لاندې په پټه یو او بل لورته تېرشویدي.

ددې ترڅنګ چې دغـزې د اوسـېدونکو پـرمخ ټـولې سرحدي لارې تړلې شوي دي دبېرون نه په رتلونکو کومکونو هم اسرئیلو بندیز لګولی اویوه حبه هم غزې ته نه پرېږدي ځکه خو په ۲۰۱۰م کې چې دترکې ترقیادت لاندې دخوراکي موادو او دواګانونه ډکه فلوټیلا دغزې پرلـور روانــه وه ســاحل تــه درســېدونه وړانـدې پـرې اسرائیلوهوايي برید وکړچې غزې ته دبشري مرستو رسولو په هوډ په فلوټیلا کې د سپرو دډلې نه یې ۱۸ تنان ووژل شول.

لنــډه دا چــې د اوســني بریدنــه لا دمخــه غــزه د اوږدې محاصرې له امله د دواګانو او خوراکي موادو دقلت سره مخامخ وه چې د اوسني یرغل په نتیجه کې دا قلت نورهم زیات شو او لاپسې زیاتېږي.

د اسرائیلو د اوسني یرغل په اړه دهر وژدان لرونکي انســان لپـاره یــوه درونکې او دتأسف وړخبره داده چې ددې خونړي یرغل په پیلولو اسرائیل له یوې خوا دغزې په اوسېدونکو دومره ستر ظلمونه کوي او له بلې خوا په ډېرې سپین سترګۍ پړه پرحماس وراچوي او وایې چې دایرغـل یــې دحمـاس لــه لـورې پر اسـرائیلو د راکټــي بریدونو د ودرولو لپاره کړیدی.

خوحماس د اسرائیلو ددې خبرې تردید کړی او ویلي یې دي چې ،،ټوله نړۍ پوهېږي چې اسرائیل دروغ وایې او دخلکو په سترګو کې خاورې وراچوي ، ،

اسرائیل چې پرغزې د اوسني ستروحشي یرغل لپاره پر اسرائیلو دحماس راکټي بریدونه پلمه کړي داځه نوې خبره نده ددې نه وړاندې یې په ۲۰۱۲ کې دځپل ۸ ورځني وحشي یرغل چې پکې څه کم ۲سوه دغزې او سېدونکي شهیدان او پــه ســونو نــور ټپیــان شـوي وو اولـه هغــې وړاندې د ۲۰۰۸ د دسمبرنه پیل او د ۲۰۰۹ دجنورۍ پورې دغزیدلی خوراسترې هغې حملې لپاره هم همدا راکټي بریدونـه پلمــه کـړې وو پــه کـومې کـې چـې د ۳ ســوو کوچنیانو په شمول د ۱۴سوو فلسطینیانو قتل عام شوی و ، هغـه مهـال دبشـر دحقوقو دنړیـوالې ادارې اسـتول شوي پلاوي د اسرائیلو داعمل ستر جارحیت او قتل عام ګڼلی و خو خبره په همدې پای ته رسېدلې وه

هــر څــوک پــوهېږي چــې غــرب دبشر او خصوصــاً دمېرمنو دحقوقــو ، درایــو دازادۍ ، ددیموکراســۍ اونـورې نـارې یـوا ځې اویـوا ځې دمسـلمانانو دځپلـو ، محکومولـو اودخپلوګټودترلاسـه کولولپـاره وهـي ؛ دبشر دوسته امریکا په شمول دټولې غربي نړۍ دولتونه ، دملګرو ملتونو اداره او دامنیت شورۍ خو مسلمانانو ته د ډېرکوچني بشري تخلف په مقابل کې هم سزاورکول ضروري ګڼي او که کوم دولت یا اسلامي غورځنګ هغه څه کوي چې دوئ یې بشري ضد اعمال ګڼي نوبیا خود دارایــې کنګـل کولو او اقتصـادي بندیزونونــه نیـولی ترحملې کولو او د دولت ړنګولو پورې خبره رسوي او په ورځ کې دننه دننه پرېکړې رامنځته کېږي ؛ خو همدې

امریکا ، نورو غربي دولتونو ، دبشر دحقوقونړیوالو ادارو ، دملګروملتونو اداري او دامنیت شوری داسرائیلو په دې دومره ستر وحشت اوبشري جنایت سترګې پټې کړې وې، داسرائیلوپرضدکوم اقدام یاپې ددې وحشي عمل غندنه خولری خبره وه دوحشت نه ډک دې عمل ته یې دبشریت ضد عمل ویلو جرأت هم ونکړ ځکه چې ۱۴ سوه وژل شوي بې ګناه انسانان مسلمانان وو.

اوس به هم همداسی وشي کله چې دیولوي شمېر فلسطیني مسلمانانو د وژلواوټپي کولونه پس اسرائیل روان عملیات ودروي (الله تعالی دې وکړي چې ژربند شي) نویوځو پلاوي به غزې ته راشي دمړو اوټپیانوارقام به خپاره او افسوس به ښکاره کړي او داستربشري جنایت به هم همدلته هېراوپرې به خاورې واړول شي.

بس همدا دامریکا ،نورې غربي نړۍ دملګروملتونو او دامنیت دشورۍ دمنافقت نه ډکه اصل څېره ده ، همدا یې انصاف دی اوهمدا یې بشردوستی ده.

افسوس دهغه خلکوپه حال دی چې اوس هم د لویدیځ اوخصوصاً دامریکاپه منافقت ، اسلام اومسلمان دښمنۍ کې شک کوي اودالانه مني چې مسلمانان دوئ بشرنه ګڼي.

له بده مرغه چې داخل داسرائیلو یرغل په داسی وخت کې دی چې دفلسطینیانو لپاره په ټولیزه توګه اسلامي نړۍ په خورا خراب حالت کې ده ، دفلسطین مسلمانان په نړۍ کې تربل هروخت د دولتونو په سطحه خپل حامیان کم ویني اوتمه نه کېږي چې په درد کې به یې ډېر حاکمان ځانونه شریک اوپه حق کې به یې اواز پورته کړي ، نوځکه به داسلامي نړۍ له لوري دخپل ځان دحمایت په اړه تر بل هر وخت زیات ناهیلي وي ؛ قذافي او صدام حسین چې دفلسطینیانو لپاره به یې غږپورته کاوه هر یو وژل شوی او اداري یې ړنګې دي ،عمرالبشیرپخپله داسرائیلودګواښونواو ګوزارونو اودغربي نړۍ دفشارونولاندې دی اوستر سوډان یې تجزیه شویدی ، ایران له یوې خوادخپل لانجمن اتومي پروګرام دحل لپاره دنړۍ دستروقدرتونو سره په خبرو بوخت اوله بل لورې په عراق دداعش پرمختګ دسخت تشویش سره مخامخ کړیدی ؛ ټوله توجوېې عراق ته اوښتی دمالکي ددولت بقا لپاره هلې ځلې کوي اوداعش چې شاید داسرائیلو نه به ورته دستر دښمن په نظرګوري دپرمختګ دمخنیوي لپاره یې په عملي اقداماتو بوخت دی نوغزې دټولو اوسپړونکو اوپه ځانګړې توګه دحماس (چې سني مجاهدین دي ) نه ددفاع یاحمایت ددریغ غوره کولو تمه ترې نه شي کېدای.

اوکوم شام چې دفلسطین دجهاد ښکاره حمایت به یې کاوه او د حماس د دوه مخکښانو قائدینو اسماعیل هانیه اوخالد مشعل دپناه ځای و اوس پکې ستر کورني جنګ روان دی اوله بده مرغه چې بشارالاسد دخپل قدرت دساتلو لپاره دمسلمانانو دهرکلي نه غزه جوړه کړې ده.

اوله بده مرغه چې یو شمېر مهمو عربي هېوادونو خو لا له وړاندې دلویدیځ دفشار په نتیجه کې دحماس تنظیم تروریست غورځنګ ګرځولی چې ددې هېوادونو نه خو بیخي داتمه نه کېږي چې دغزې دمسلمانانو په حق کې به موأثر اواز پورته کړي.

اوډېرداافسوس ځای دادی چې دګاونډي هېواد مصر هغه حالت ندی کوم چې یې له دې وړاندې په۲۰۱۲ کې پر غزې داسرائیلو دحملې پر مهال وبلکې په ۲۰۰۸ - ۲۰۰۹کې چې پرغزې داسرائیلو خونړۍ حملې روانې وې هغه مهال چې دمصر دحکومت کوم دریغ و نن یې هم هغې ته ورته دریغ غوره کړیدی

په ۲۰۱۲ کې چې اسرائيلو پر غزې اوږده خونړۍ حمله وکړی وه پرهېواد د امريکا او اسرائيلو هغه لاسپوڅی اداره چې مشري يې حسن مبارک کوله ، له منځه تللی او پرځای يې د حماس دنظر حامي ولسمشر محمد مرسي واکمن و دمحمد مرسي اداری دمظلومو فلسطيني مسلمانانو سره عملًا خواخوږي ښکاره کړه او د اسرائيلو دروان وحشي يرغل د ودرولو لپاره يې هم يولړ عملي گامونه پورته کړل ، د اسرائيلو نه يې سفير راوغوښت ؛ په قاهره کې يې د اسرائيلو سفير دباندينيو چارو وزارت ته احضار کړ ، ورته يې احتجاج وکړ ، د امنيت شوری او عرب ليگ نه يې په کلکه وغوښتل چې د اسرائيلو ديرغل د ودرولو لپاره دې معقول اقدام وکړي، ولسمشر محمد مرسي خپل رومبی وزير هشام قنديل غزې ته ولېږلو ؛ هشام قنديل غزې ته په رسېدو د الشفاء روغتون نه ليده نه وکړه ، هورې يې په ۲ شهېدانو کې د ۴ کلن محمد ياسر جسد غېږته دراپورته کولو نه پس ښکل کړ ، له سترگويې اوښکی روانی شوې او ويې ويل ،، داناورين دمنلوو ړنه دی ، دنړيوالو مسئوليت دی چې مخه يې ونيسي او مصر به يې دمخنيوي لپاره هرډول قرباني ورکړي ،،

خو برعکس په ۲۰۰۸-۲۰۰۹ کې پرغزې د اسرائيلو خونړۍ حملې روانې وې خو دحسن مبارک اداري دغزې دمسلمانانو په وړاندې دمصر ټولې دروازې تړلې وې نه يې کوم مسلمان ته عارضي پناه ورکوله او نه يې هم خوراکي مواد او دوا غزې ته ورپرېښوده.

لنډه دا چې د اسلامي نړۍ د ۵۷ هېوادونو د دولتونو په اړه حالت په مجموعي لحاظ مايوسه کوونکې دی ، پردې هېوادونو مسلطو حاکمانو او ددوئ شريک تنظيم اسلامي کانفرانس دفلسطيني مسلمانانو سره دخواخوږۍ او دوحشي اسرائيلو حملو ودرولو لپاره هيڅ عملي اقدام ونکړاونه يې دشرم نه د ډک سکوت روژه ماته کړه ؛ په نړۍ کې دعامو پېښېدو را پېښېدو پر مهال د رسمي عادي غبرگونونو په څېر په غزې کې دروان ستر بشري ناورين په اړه هم د اسلامي هېوادونو دمشرانو له لورې په جلا جلا ډول غبرگونونه رامخې ته شول چې هيڅ گټه يې ونه رسوله ؛ پکار دا وه چې دحملې په هماغه رومبۍ ورځ د اسلامي کانفرانس ترمشرۍ لاندې بېړنۍ ناسته کړی او په ۲۴ ساعتونو کې دننه يې د اسرائيلو دحملو دودرولو غوښتنه کړی وای ؛که دنه منل کېدو په صورت کې يې په نړيواله سطحه داحتجاج ورځ ، دملگرو ملتونو له رکنيت نه اجتماعي استعفا ،داروپا او امريکا سره تجارتي پرېکون او دگډ جوابي دريځ غوره کولو اعلان کړی وای نو څه په کامل باور دا وايم چې له ۲۴ ساعتونو نه به وړاندې هم د اسرائيلو بريدونه ودريدلي وای او هم به دتل لپاره د اسرائيلو دداسې وحشت مخنيوی شوی وای خو افسوس چې داسې ونه شول.

دا هم د درد نه ډک خبره ده چې د اسلامي هېوادونو درسنيو حالت هم ددې هېوادونو حاکمانو له حالت نه بدل ندی ؛ په نايجيريا کې ۳ مياشتې وړاندې ديو مکتب نه عيسوي انجونې وتښتول شوې او پړه دمسلمانانو په بوکو حرام نومي تنظيم ورواچول شوه نو دکفري نړۍ ترڅنگ د اسلامي نړۍ رسنيو هم دنيا په سر راخستی وه او نن چې ددې پېښې کابو ۱۰۰ ورځې تېرې شويدي لاېې هم له ياده نه باسي او ښه په شد ومد يې نړيوالو ته دوريا دولو او دعاملينو دغندلو او ورته دسزا ورکولو غوښتنې روانې دي ؛ او بايد چې همداسې وکړي خو دلته چې زموږ په فلسطين کې يو ستر بشري ناورين رامنځته شويدی ؛ دانسانانو (چې اکثريت يې کوچنيان او مېرمنې دي) قتل عام دی نو د اسلامي نړۍ رسنۍ خپل يو فيصد مسئوليت هم نه اداکوي ؛ نن په

نړۍ د رمزي کلارک ؛ جارج ګيلو اوټوني بل په څېر نامسلمانو پوهانو هم دفلسطينيانو په حق کې غږپورته کړی او په اسرائيلي وحشت سخت تنقيدونه کوي ؛ امريکايې جورنالسته ايبي مارټن روسي تلويزون ته په غزې کې داسرائيلو داوسني وحشت په اړه دراپور ورکولو پرمهال دېته مجبوره شوه چې ووايي IT IS TOO MUCH
عيسوي جورنالست ايلن سورن سين په خپل راپورکې ويلي چې دسيروت په غونډۍ مې ګڼ اسرائيليان وليدل چې په چوکيو اوقالينوناست وو ؛ بيراوشراب يې څښل اوپرغزې دهر بم په پرېوتوبه يې دخوښۍ چغې پورته کولې.
دبرتانې دولسي جرګې غړي جيرالډ کافمين چې پخپله هم يهودي دی وايي چې پرفلسطينيانو داسرائيلو وحشت داسې دی لکه پريهودانو چې دنازيانوله لورې کېدل.
دبي بي سي په څېر متعصبه اداره هم مجبوره شوه چې ووايي: دجرمني نازيانو په ظلمونو چې کومويهودانو نړۍ په سر راخستې همغوئ دفلسطيني ولسي وګړو په وژلو جشنونه لمانځي ؛ فلسطينيانو ته انسان ويلو باندې يهودان خفه کېږي ؛ دسزا ورکولو په کمپونوکې به چې نازيانو دکومويهودانوپسې چکې وهلې نن دهمغوئ ځلورم نسل دشپې پرمهال غونډيو ته پورته کېږي او پر غزې دغورځېدونکو بمونو نه دآتش بازۍ په څېر خوندونه اخلي ، ،
نو په داسې حال کې چې ګڼ شمېر دنامسلمانو رسنۍ دغزې داوسني وحشت په اړه چوپه خوله ندي پاتې شوي داسلامي هېوادونوزياتره رسنۍ پدې اړه بيخي چوپه خوله دي اويوازې هغه څه خپروي کوم چې ددې هېوادونودحاکمانو اوددوئ دتمويلونکوبادارانو په مزاج برابروي.

په اسلامي نړۍ کې دمال اوبشري ځواک هيڅ کمی نشته خومتاسفانه چې حاکمانو کې يې لوړ عزم ،کلکه اراده ، همت اوجرأت نشته ، د مسلمانو ځوانانو عزائم لوړ دي ، ارادې يې کلکې دي ، جرأت اوهمت ته يې عالم حيران دی ، قرباني ورکوي ، احتجاج کوي ، داسلام اومسلمانانودښمنانو ته اخطارونه ورکوي خوچې په واک کې لاسپوڅي دي نو دا ځوانان دحکمت اوجرأت نه په ډک پاليسۍ نه اسلامي نړۍ راټولولای شي اونه داسلامي نړۍ نه هغسې دفاع کولی شي څنګه چې يې غواړي ،غزې ته ګوري چې پرې ددرندو بمونو اوتوغندو باران دی ، لوخړې ترې پورته کېږي ، هره ورځ په لسګونو کوچنيان ، مېرمنې او بوډاګان وژل کېږي ، قيامت ته ورته فضا ويني خوهيڅ نه شي کولای.
هو !دامريکا په نوم هغه زبرځواک چې په نړۍ کې داسرائيلوترټولو سترتمويلونکی هېواد دی؛ په هر حالت کې يې ترشا کلک ولاړدی؛ نه يوازې دا چې تمويلوي يې بلکې په پراخه پيمانه هر ډول پر مختللې وسلې ورکوي ؛ دفلسطيني مسلمانانو قتل عام داسرائيلو دفاع او پر ځای عمل بولي ؛ دې قتل عام اوپه فلسطيني خاوره کې يې ديهودانو لپاره نويو مېشت ځايونو جوړولو ته هڅوي ؛ داسرائيلو دجبر پر ضد دهر راپورته شوي غږ سره مخالفت ښايي اودملګرو ملتونو په اداره کې داسرائيلي وحشت پرضد هر رامخې ته شوی پرېکړه ليک ويټو کوي ددې زبرځواک او دنورو متحدينو دټکولو او ورنه دمسلمانانو دانتقام اخستلو موکه الله تعالی دی ځوانانو ته په افغانستان کې ورکړېده نودا اوس په دوئ ده چې ددې موکې نه څومره ګټه پورته کوي اوعملاً دفلسطيني ورونو سره په درد کې ځانونه څومره شريکوي؟

# مارگریت چگونه مریم شد؟

## داستان اسلام آوردن

چه زیباست هنگامي كه انسان چشمانش به سوي حق روشن مي‌شود وحقيقت را بعد از گمراهي مي‌يابد. چه زيباست هنگامي كه شخص با احساساتي روحاني مواجه مي‌شود وتمام بدنش را در برمي گيرد. مارگريت كه اسمش را به مريم تغيير داده است يكي از زناني است كه در جستجوي حقيقت بوده است كه آن را يافته است...

مارگريت ماركوس او در يكي از حومه‌هاي نيويورك در سال ۱۹۳۴ از پدرومادري يهودي متولد شده است. تعليمات ابتدايي را در منطقه "ويستشير" كه يكي از مناطق شلوغ نيويورك محسوب مي‌شود گذرانده است. طرز فكر او وروش زندگي‌اش از همان ابتدا نشان مي‌داد كه زلزله‌اي در درون او در حال شكل گيري است كه باعث تغيير در زندگي او مي‌شود. او هنگامي كه نوجواني بيش نبود به كتاب وكتاب خواندن علاقه وافري داشت. از همان ابتدا با سينما ورقص وموسيقي پاپ مخالف بود وهيچگاه در جلسات مختلط شبانه شركت نداشته است.

مريم مي‌گويد: وقتي ده ساله بودم بسيار به كتاب خواندن علاقه داشتم مخصوصاً كتبي كه در مورد عربها سخن مي‌گفت. آنجا بود كه فهميدم اين اعراب نبودند كه اسلام را ساختند بلكه اسلام بود كه اين قبايل بدوي وابتدايي را سروران عالم ساخت.

بعد از موفقيت در دبيرستان در سال ۱۹۵۲ به قسم پژوهشهاي ادبي دانشگاه نيويورك ملحق شد؛ ولي به علت بيماري كه در سال دوم تحصيل به آن دچار شد مجبور شد به مدت دو سال از درس وتحصيل دور باشد اما در اين مدت او بيكار ننشست بلكه به تحقيق در مورد دين اسلام پرداخت؛ وقتي كه به تحصيل برگشت سؤالات زيادي را در ذهن داشت كه به دنبال آن احساس عاطفي نيز نسبت به اعراب پيدا كرده بود. در دانشگاه با يک يهودي ديگر آشنا شد كه او مصمم به دخول به اسلام بود؛ او نيز يک احساس عاطفي نسبت به اعراب داشت وتوسط او با دوستان عرب بسياري آشنا شد. او ودوستانش در جلسات سخنراني يک حاخام يهودي به عنوان "تعاليم يهود دردين اسلام" شركت مي‌كردند. اين حاخام يهودي سعي مي‌كرد ثابت كند كه تعاليم اسلام تماماً وبه طور مستقيم از كتاب تلمود (كه تفسير تورات درنزد يهود بود) گرفته شده است. او در اين زمينه از روي كتابي كه خود تأليف كرده بود به توضيح اصول دين اسلام مي‌پرداخت وبا ذكر آياتي از قرآن مجيد آن را به كتاب تلمود ربط مي‌داد.

تناقض وادعاهاي باطل در آمريكا صهيونيستها با آزادي كامل به ترويج افكار خود مي‌پردازند، آنها از طريق تبليغات وهمچنين توليد فيلم به تمجيد دولت صهيونيست مي‌پردازند؛ ولي براي او اين امر متفاوت بود زيرا او اين امور را ناشي از برتري دين اسلام نسبت به يهوديت مي‌دانست؛ جالب اين جاست كه نخست وزير سابق اسرائيل "بن گوريون" كه صهيونيستها او را از

بزرگان یهود می‌شمارند نه تنها به خدایی که برتر از سایر موجودات بود اعتقادی نداشت بلکه به معابد یهودی‌ها نیز داخل نمی‌شد و پایبند شریعت یهودی نیز نبود، در عصر حاضر نیز همین طور است به طوری که بسیاری از صهیونیست‌ها می‌پندارند خداوند نماینده املاک جهانی است که هرکجا که دلشان بخواهد به آن‌ها زمین اختصاص می‌دهد بدون اینکه به سایر بندگانش تخصیص دهد!.

هرچه بیشتر مریم به این افکار می‌اندیشید متوجه پوچی عقاید یهود وتتناقضات عجیب در دین آن‌ها می‌شد؛ او به این نکته پی برده بود که علمای یهود به شدت از اسلام و پیامبر اسلام متنفر بودند و این تفکرات باعث شده بود که مریم بیش از پیش از آن‌ها فاصله بگیرد. روزی که او به قرائت ترجمه قرآن کریم پرداخت برای او یقین حاصل شد که این کتاب از جانب خداوند علیم نازل شده است که در آن تمام امور بیان شده است. او تقریباً روزانه به کتابخانه بزرگ نیویورک مراجعه می‌کرد وبیشتر اوقات را با ترجمه کتاب سترگ "مشکاة المصابیح" که در چهار جلد نگاشته شده است می‌پرداخت. در این مدت او توانست جوابهای قانع کننده‌ای درمورد اموری که در این زندگی برایش بدون جواب مانده بود دست پیدا کند. او در این مدت پی برده بود که اسیر شهوتهای نفسانی گشتن برابر است با غرق شدن در لذت‌های فانی این دنیا که نتیجه‌اش جز افسردگی و کژی در مسیر زندگی چیز دیگری عایدش نمی‌شد.

و... سرانجام تولدی دیگر

در یکی از روزهای سال ۱۹۶۱ او تصمیم خود را گرفت وبه مقر بعثه اسلامی در بروکلین مراجعه کرد وبه دست داعیه اسلامی (داوود فیصل) مسلمان شد و اسمش را به مریم تغییر داد وبه دعوت شیخ (ابو الأعلی مودودی) به پاکستان مهاجرت کرد وبا (محمد یوسف خان) ازدواج کرد که از او چهار فرزند دارد. مریم در این مورد می‌گوید: علی رغم اینکه پاکستان نیز مانند هر کشور مسلمان دیگری است که از آفت‌های انگلیس وآمریکا در امور مختلف در امان نمانده است اما شخص می‌تواند با دینش یعنی اسلام زندگی کند هرچند که درراه پیاده کردن دین در این کشورها نیز با مشکلاتی مواجه می‌شود اما زود می‌تواند آن را تصحیح کند.

نامه‌ای به عموم مسلمین  ازقرآن وسنت پیروی کنید نه فقط در شعار که در سیره عملی زندگیتان نیز این دستورات را پیاده کنید؛ از اختلاف بپرهیزید ووقتتان را در امور بی مورد تلف نکنید [اگر این دستورات وفرامین را پیاده کنید] به مشیت خداوند او شمارا به سعادت بزرگ در این زندگی وجایزه بزرگتر در آخرت که همانا [بهشت [است می‌رساند....

نامه‌ای متفاوت مریم دراین مدت والدینش را نیز فراموش نکرد؛ در سال ۱۹۸۳ نامه‌ای خطاب به والدینش در امریکا به این مضمون نوشت: "باید بدانید که جامعه‌ای که ما در آن رشد ونمو کرده ایم دچار از هم گسیختگی است وهر لحظه متلاشی شدن آن را شاهد خواهیم بود؛ آمریکای کنونی دنباله امپراطوری روم قدیم است که در مراحل آخر به سقوط انجامید، این امر را نه فقط در آمریکا که در کشورهای اروپایی وهر کشوری که دارای فرهنگ غربی است را شاهد خواهیم بود. تجربه ثابت کرده است که هر کشوری که براساس نظام سرمایه داری ولائیک تشکیل شده باشد نمی‌تواند الگویی مناسب برای یک نظام اجتماعی موفق تلقی شود"

# داروپا د بشري حقوقو محکمې

## توره پر پړکړه!

فرهاد

دفرانسې دحکومت لخوا داپرېکړه چې په دغه هېواد کې په مسلمانې میرمنې له کوره په پرده کې بیرون نشي وتلی!! په وروستیو کې داروپا دبشر حقوقو دمحکمې د لورې هم توثیق شوه، محکمې دغه پرېکړه دیوې مسلمانې فرانسوي میرمنې دعریضې په ځواب کې ور کړې ده، هغې محکمې ته په عریضه کې ویلي و چې دخلکو دګڼې ګوڼې ځایونو کې لوڅ مخ ګرځیدو سره یې مذهبي ازادۍ ته زیان رسي!په ۲۰۱۰ز کې فرانسې دخلکو په عامه ځایونو کې دمیرمنو لپاره په مخ پټولو اونقاب اغوستلو بندیز ولګا و،او دابندیز دفرانسې دپخواني ولسمشر سر کوزي لګولی و، څوک چې نن سبا په بد اخلاقیو کې دښکېلتیا له امله ترنیو کو لاندې دی او دمحکمې لخواله پوښتنو او ګرویږونو سره مخ دی.

داروپا دبشري حقوقو محکمې دعریضه کوونکې میرمنې عریضه په دې رد کړې چې دګڼې ګوڼې په ځایونو کې خلک شاید دغسې رویه اوعادت خوښ نکړې، ددې معنی داده چې دوتنه له یوبل سره خلاصې خبرې نشي کولی،بې بې سي چې په دغه ډول دوسیو کې دلویدیځ مدافع وکالت کوي، دا سپیناوی هم کړی: چې په لویدیځ کې په دې خبره اتفاق دی، چې دوګړوترمنځ له یوبل سره یوځای کیدل،دټولنیز ژوند لازمې جزدی، په داسې ټولنه کې له یوبل نه په مخ پټولو نیو کې کولی شي،پورته تفصیل بې بې سي ور کړی دی، اوپه دې یې کوم طنزیه احتجاج هم ندی کړی، بلکې ترې بشپړ ملاتړیې کړی دی، او که دمیرمنو خلاف داسې کومه پرېکړه په کوم اسلامې هېواد کې شوې وای چې هغې څه نه څه دیني رنګ درلودای،نوبیا به دبې بې سي طنزیه جملې لیدلی شوې وې ، دبې بې سي نومیالیو کتونکو اوبلاګرز به خپله ټوله وړتیا نه وه سپمولې اویو توپان به یې پورته کړی و، داعریضه چې یوې میرمنې کړې وه« چې دخلکو دګڼې ګوڼې په ځایونو کې دنارینه وو په مخ کې دخپل مخ په لوڅولو اندیښمنه ده»، هغې غوښتل که کومه میرمن خپل مخ نه لوڅوي دا باید دهغې حق وګڼل شي.

که په واقعې توګه درایې اظهار او دشخصې معاملاتو په اړه داروپا یانو اندونه ولیدل شي، نومیرمنولپاره په رښتیا هم داحق ور کول پکاردي چې هغوئ له نارینه وونه خپل مخ پټ کړې، څنګه چې دګڼې ګوڼې په ځایونو کې مغربي میرمنو ته دهرډول لباس اغوستلو اجازت دی، حتی چې ډېر لباسونه داسې هم دي، چې ورته دلغت له پلوه لباس ویل ګران دي، یعنې دصفر په مقدار لباس؛ په اروپا کې دګڼې ګوڼې په ځایونو هرډول بیهودګی اوبداخلاقی نه ډک حر کتونه زغمل کېږي، البته په پرده کې ورته دمیرمنې لیدل له زغمه بیرون دي،په اصل کې

هلته دمعیارونو سره سمه چې کومه ازادي ده هغه دبداخلاقۍ اوبیهودګۍ ازادي ده، دهغې ازادۍ په دایره کې شرافت او اخلاقوته درناوی درلودل ځای نلري.

داروپا لګونه میرمنې دلباس پرته لوڅې لغړې ګرزي، اوس که هلته یوه نیمه مسلمانه میرمن نقاب واغوندي نو هغوئ لوڅې ټولنې ته ترې کوم خطر کیدای شي؟ دایوه پوښتنه ده، خو داروپا اوباش ډاریږې چې هسې نه نقاب عام شي، اوپه میرمنو کې مقبول شي او که داسې وشول نوبیا به په هره دوه لارې، هردوا کان، پارک، دفتراودسرک په سر په وړیا توګه میرمنې مندل ورته ګران شي، اروپا میرمن یوه عوامي اثاثه ګرځولي، چې دهغې نه خدمتونه اخستل، او دهغې په جسم باندې دټولې ټولنې حق منې، دغه وجه ده چې اروپا او امریکا په هیڅ صورت له خپلې اجتماعي اثاثې نه لاس په سر کیږې،

دفرانسې په ګډون په نورو اروپایي هېوادو کې هم دمیرمنو لپاره دنقاب په اغوستلو بندیز دی، مسلمانې میرمې دډول ډول ستونزو سره مخ دي. بلکې په دې اړه دیوه مخصوص لورې نه دمنافرت ښکار دي، چې پایلې یې ترمرګونو پورې ښکاره شوې دي، دوه کاله وړاندې دجرمنې به یوه محکمه کې دننه یوه مسلمانه میرمن "مروه الشربینی" یوه جنوني سړي په خنجرونو ووهله اوشهیده یې کړه، هغه هم محکمې ته دنقاب لپاره عارضه شوې وه، اوس یوځو ورزې مخکې یوه سعودي میرمن ووژل شوه، چې دهغې په اړه هم دکتونکو په وینا: هم داسې دنقاب کوم مخالف په شهادت رسولې

دپردې حق مندلو لپاره په اروپا کې میشت مسلمانان دستونو مشکلاتو سره مخ دي، دادهغو ازادخیالو او دغرب دغلامانو لپاره بس ده چې هغوئ شور اوغوغا پیل کړې چې مسلمانان په جبر سره میرمنې پردې کولوته اړیستلې، په اروپا کې څوک په یوه ماشومه باندې هم جبر نشي کولی هغه پخپله خوښه لباس اغوندي، خو دمیرمنو لخوا دغوښتنو سربیره هغوئ ته پردې حق نه ورکول کیږي، بلکې جبراً هغوئ بې پردې کې ته اړیستل کیږي اوپردې ترې تروړلی شي.

که وکتل شي نو جبر په اروپایې ټولنه کې له میرمنو سره کیږي، بلکې که دسهې زوایې نه حالت وکتل شي، نو اروپا کې هره میرمن دجبر لاندې ازاد ژوند ته اړیستلې، په ټولنه کې یې ګڼ کارونه ددې لپاره ضروري ګرځولي، چې په هغو کې دښځو بې پردې کول دي، بلکې اروپایي میرمنې مجبوردي چې خامخا به له نارینه وو سره ناروا اړیکې جوړوي، ولې چاپیریال داسې دی چې کوم نارینه دمیرمنو سره یوځای ځان نه خلط کوي، هغه ناروغ ګڼل کیږي، خلک هغه پورې ټوکې ټکالې کوي، هغه ته په حقارت کتل کیږي، له دې وجې اروپا کې میرمن مجبوره ده چې دنارینه وو سره به ناروا اړیکې جوړوي، چې دا په حقیقت کې ازادي نده، یوټولنیز جبر دی، چې میرمن هرځای استعمالوي.

نومسلمانې میرمنې دې پخپلو ټولنو کې دخپلو کالیو او داسلامي اقدارو درناوي وکړي، دپردې قدر دې وکړي، اوفکر دې وکړي چې په کومو ټولنو کې میرمنوته دنقاب اجازه نه ورکول کیږي، هغه میرمنې به له څومره ستونزو او مشکلاتو سره مخ وي، حال دا چې نړۍ کې تاثر دادی چې په اسلامي هېوادو کې له میرمنو سره ناروا سلوک کیږي، هرکله چې کومه واقعه رامنځته شي چې هغه دلویدځ دمعیارونو سره سمه نه وي نو دهغوئ حکومتونه غوغا جوړه کړې، اوغوښتنه کوي چې هغې دمخنیوي لپاره ګامونه پورته کړئ، خو افسوس چې داسلامي هېوادو حکومتونه له سیاسي پلوه دومره حقیر او کمزوري دي چې دپردې پښان دشرافت په نښه دبندیز لګولو خلاف یوه هم غږ پورته نکړای شوا وهرچې امریکا او اروپا ده هغوئ دخپلو معیارونو یوه ادنی سرغړونه هم نه زغمي .

# دشهامت فقهي مسایل

# زکات فریضه څنګه اداء کیږي؟

## زکات په کومو خلکو او د کومو خلکو لپاره

سجاد

نړۍ کې ټول میشت خلک په درې ډلو ویشل کیږي:

۱:.... شتمن خلک، په چاچې دخاصو شرایطو وروسته زکات فرض کیږي.

۲:.... غریب خلک، چې ور باندې زکات فرض ندی او رواده چې له بل نه زکات واخلي.

۳:.... دریم منځنۍ درجه خلک دي چې په هغوئ نه زکات فرض دی اونه دهغوئ لپاره زکات اخیستل جوازلري.

دلته ددې درې ډلو دپیژندلو لپاره هغه معیارونه بشودل کیږي چې له مخې یې هره ډله باید دخپل حال او کیفیت پیژندلو سره سم په ځان دخدای (ﷻ) لازم حکمونه سرته و رسوي. ددې لپاره دوه شیان پیژندل ضروري دي: یو داچې هغه کوم څیزونه اومالونه دي، چې دهغو په شتون کې زکات فرض دی؟اودویم دهغو څیزونو او مالونو مقدار به څومره وي چې دهغو په ترڅ کې یو تن زکات ور کولی شي یا زکات اخیستلی شي؟ لومړی څیز

"د زکات مالونو " او دویم څیز د "زکات د نصاب" په اړه دعلم په حاصلولو سره پیژندل کیدای شي. لاندې دزکات مالونه اوزکات نصاب په تفصیل سره راوړل کیږي:

### دزکات مالونه:

دزکات له مالونو څخه مراد هغه هغه شیان او توکي دي چې دهغو ( مخصوص مقدار ) په مالک ګرځیدو زکات فرض کیږي، هغه ټول څلور ډوله ( شیان یا مالونه دي) دي:

۱:.... سره زر، که دزیور یا ګاڼې په شکل وي، دخښتې، یا د لوښي په شکل وي، استعمالولی شي یا نه، خالص وي یا ور سره ملاوټ شوی وي، په هر صورت سره زر دزکات مال دی.

۲:.. سپین زر، دګاڼې اوزیور په شکل وي، یادغسی وي، دخښتې یا لوښي په شکل وي، استعمالولی شي او که نه، خالص وي او که ګډ کړل شوي په هر صورت دا( سپین زر) دزکات مال دی.

۳:... نغده، پخپل ملک کې وي، یا دکوم بل چا په ملک کې، ځان سره وي ،یا په بانک کې، چیک وي، یا ډرافټ، نوټ وي یا سکه، چاته یې قرض ور کړې وي (په دې شرط چې دترلاسه کیدو امیدوي) په دې ټولو صور تونو کې نغده د زکات مال دی.

۴:..... دتجارت مال، یعني تاجر ددو کان هرهغه سامان چې دپلورلو په نیت یې پیرلی وي، او تر اوسه دپلورلو نیت ولري نودا (دتجارت مال) دزکات مال دی، (اوکه یاد مال یعني دتجارت مال دکور داستعمال لپاره یې ساتلی و، یا یې ځوی اودوست ته دهدیې په توګه ور کړي، یا یې په اړه دپلورلو نیت پریښود نو دا مال دزکات مال ندی(بدایع الصنایع کتاب الزکات، ۲ټوک ۱۰۰مخ، دار احیاء التراث العربی)

دا ټول څلور ډوله مالونه دي، چې ورباندې (مخصوص مقدار ته په رسیدو) زکات فرض کېږي، البته که یو تن پوروړی و، نو دپور اداء کولو وروسته دي دپاته مال زکات ور کړي.

## دزکات نصاب:

په پورته کرښو کې درې ډلې وښودل شوې، چې دهغو تمیز دنصاب په مالک کیدو موقوف دی، ددې تیمز پیژندلو لپاره ضروري ده، چې نصاب دوه ډوله وي، یو نصاب تر زکات ور کونکي پورې اړه لري، بل ترزکات اخیستونکي پورې اړه لري، په دواړو نصابونو کې یوڅه توپیر دی، چې په لاندې ډول لیکل کېږي:

## لومړی ډول نصاب(دزکات ورکونکي لپاره)

الله (ﷻ) دخپلو غریبو بنده ګانو لپاره په شتمنو باندې دهغوئ په مالونو کې پریو مخصوص مقدار زکات فرض کړی دی، کوم ته چې نصاب ویل کېږي، که هر سړی ددغه نصاب څښتن شو، په هغه باندې زکات فرض دی، او که دهر سړي سره دهغه نصاب نه کم مال وي په هغه زکات فرض ندی، په دې نصاب کې یواځې هغه څلور دزکات مالونه راځي، کوم چې بره ذکرشول، دڅلور ډوله زکات مالونو هغه مخصوص مقدار چې په هغه زکات فرض کېږي، په لاندې ډول لیکل کېږي:

۱:.... که دچا سره یواځې سره زرو، بل کوم (مثلاً: سپین زر، نغده پیسې، یا دتجارت مال) ورسره نه و، نو څو چې شته سره زر اووه نیمې تولې (۸۷.۴۷۹ګرامه) نه وي شوي ترهغه زکات فرض کېږي نه او که سره زر یاد وزن ته ورسي، نوزکات فرض کېږي (بدائع الصنایع، کتاب الزکاة، صفة الزکاة، ۲ټوک ۱۰۵مخ، دار احیاء التراث العربی)

۲:.... که دکوم سړي سره یواځې سپین زروي، بل کوم مال (سره زر، نغدې پیسې، یا دتجارت مال) ورسره نه وي، ترڅو چې سپین زر دوه پنځوس نیمې تولې (۶۱۲.۳۵ګرامه) نه وې شوي ترهغه وخته پورې زکات فرض ندی، او که دسپینو زر وزن پورته وزن ته رسي نوزکات فرض دی (بدائع الصنایع، کتاب الزکات، أموال الزکاة، ۲ټوک، ۱۰۰مخ، دار احیاء التراث العربی)

۳:... که دیو سړي سره یواځې نغدې پیسې وې، بل کوم مال (مثلاً: سره زر، سپین زر، یاد تجارت مال) نه وي، نو ترڅو چې نغدې پیسې دومره نه وي شوي چې په هغو دوه پنځوس نیمې تولې (۶۱۲.۳۵ګرامه) سپین زر وپیرل شي، ترهغه وخت پورې زکات فرض ندی او که ورباندې دوه پنځوس نیمې تولې (۶۱۲.۳۵ګرامه) سپین زر کیدل نوزکات فرض کېږي(بدائع الصنایع، کتاب الزکاة، أموال لزکاة، ۲ټوک، ۱۰۳مخ، دار احیاء التراث العربی)

۴:..... که دکوم سړي سره زر اوسپین زر وي، (هرڅومره چې وي) یا سره زر، نغدې پیسې وې، یا سره زر او دتجارت مال وي، یا سپین زر، نغدې پیسې وې، یا سپین زر یا دتجارت مال وي، (ددریواړو مالونو) سره زر، سپین زر، اونغدې پیسې وې، یا سره زر، سپین زر، اودتجارت مال وي، یا څلور واړه مالونه) سره زر، سپین زر، نغدې پیسې، او دتجارت مال وي، نو په دې ټولو صورتونو کې هغه مالونه بیه کېږي، که دهغو بیه ددوه پنځوس نیمو تولو(۶۱۲.۳۵ګرامه) سره برابر شوه، نوزکات واجب دی، او که کمه شوه زکات واجب ندی. (بدایع الصنایع، کتاب الزکاة، صفة الزکاة، ۲ټوک، ۱۰۵ - ۱۰۶مخ، دار احیاء التراث العربی)

## د نصاب دویم ډول (یعني دزکات اخیستونکي لپاره)

په دې نصاب کې یاد نصاب (یعني دلومړي ډول نصاب ټولو صورتونو) سره له اړتیا څخه زیات سامان هم شمارلی

شي،اودنصاب پـه دې دويـم ډول کـې هـم هغـه ټـول صـور تونه جوړيږي، کوم چې په لومړي ډول نصاب کې هم جوړيدل.مثلاً:

۱:.... که د کوم چا سره يواځې سره زر او له اړتيا نه زيات سامان وو، نو دواړه ډوله سامان بـه يـيه کولی شي، کـه دهغو بيه دومره کيده چې په هغه دوه پنځوس نيمې تولې (۶۱۲.۳۵) سپين زر پيرل کيدل، نو ددومره مقدار مال څښتن لپاره زکات اخستل جايزندی اوپه داسې سړي باندې سر سايه (صدقه فطر) ور کول او قربانې واجب دي.

۲:.... کـه يو سړی يواځې سپين زر ولري،او دضرورت نه سيوا سامان هم ولري، ددينه علاوه نور مال (لکه سره زر، نغدې پيسې، اودتجارت مال) ورسره نه وي،نو دغه ډول مالونه بـه بيه کولی شي، که دهغو قيمت دومره وچې ورباندې دوه پنځوس نيمې تولې(۶۱۲.۳۵ګرامه) سپين زر کيـدل، نـو ددومـره مقـدار مـال څښتن لپـاره زکـات اخستل روانـدی اوپـه داسې سړی بانـدې سر سايه (دفطر صدقه) ور کول اوقرباني کول واجب دي.

۳:... که له يو سړی سره نغدې پيسې او دضرورت نه زيات سـامان وو اونـور مال(مثلاً:سره زر، سپين زر،او دتجارت مـال) ور سره نه و هر کله چې دهغه قيمت دومره شو، چې پـه هغه باندې دوه پنځوس نيمې تولې (۶۱۲.۳۵ګرامه) سپين زر کيـدل نوددغه مقـدار مـال څښتـن لپـاره زکـات اخسـتل نـاروادی او ورباندې سر سايه (دفطر صدقه) ور کول او قربانې کول واجب دي. که ددې دواړو قيمت دومره نه و، چې ورباندې دوه پنځوس نيمې تولې( ۶۱۲.۳۵ګرامه) سپين زر و شي ، نوبيا ور ته زکات اخستل روادی.

۴:.... که يو سړي سره (پنځه واړه مالونه) سره زر، سپين زر، نغدې پيسې، دتجارت مال، اوله ضرورت نه زيات سامان وو، په دې ټولو صور تونو کې به دا ټول مالونو بيه کولی شي، که پـه هغه باندې دوپنځوس نيمې تولې(۶۱۲.۳۵ګرامه) سپين زر کيـدل، نو دغـه سړي لپـاره زکـات اخسـتل روانـدی او ورباندې سر سايه ( دفطر صدقه) ور کول او قربانې کول واجب دي. که د دې پور ته يادو صور تونو څخه يو صورت هم نه وو،نودغسې سړي تـه پـه شريعت کې صاحب نصاب نشي ويل کيدای ، يعنې ددغه سړي لپاره هر ډول واجبـه صـدقات اخسـتل روادي.( بـدايع الصـنايع، کتـاب لزکاة،مصارف الزکاة، ۲ټوک،۱۵۸مخ، داراحياء التراث العربی)

## له ضرورت نه زياتي سامان:

هغـه ټـول څيزونـه دي، کـوم چـې پـه کورونـو کـې سـاتل کيږي، کومو ته چې کلونه، کلونه ضرورت نه راځي،

الف: وې سي آر،ډش، دنارواامضامينو آډيو او ويډيو کيستونو پشان څيزونه په ضرورو تونو کې نه راځي، بلکې لغويات دي،ياد شيان دضرورت نه علاوه دي، له دې وجې دا ټول به بيه او حسابولی به شي.

ب:.... داسـتوګنې کـور، داغوسـتلو کـالي، دڅملاسـتو بسترې،دضرورت سورلې،د کاله عام ضروري سامان چې کوم پـه عامه توګه استعماليږي،داټول دضرورت په سامان کې راځي، پـه دې سره انسان شرعاً شتمن نه ګڼل کيږي، دادنصاب پـه حساب کې نشي شمارلی(الفتاوی الهنديه، کتاب الزکات، الباب الاول فی تفسير الزکاة، ۱ټوک، ۱۲۶مخ، رشيديه)

ج:...صنعتي آلات، ماشينونه، او نور دروزې ګټلو وسايل(په کومو سره چې خلک روزې ګټي) هم پـه ضرور تونو کې راځي،هغه بـه نشي حسابولی، لکـه: دخيـاط کـاليو ګنډلو ماشين،د تر کاڼ، آهنګر ډ بزګر اونورو کاري وسايل،دسبزې اوميوې پلور لو ريړې ،بايسکيل اونور... (الفتاوی الهنديـه، کتـاب الزکـاة، البـاب الاول فی تفسير الزکاة،۱ټوک، ۱۷۶مخ)

د:... که دچا سره دضرور تونو پوره کولو سامان وو، خو هغه ددينه علاوه څه نور سامان دضرورت نه سيوا ساتلی وو، مثلاً:دچا ضـرورت پـه يـوه موټرپـوره کيـده، ورسـره دوه مـوټرو و، يـا دهغـه ضرورت په يوه کور کې پوره کيږي، خو دوه کوره لري، يا ددينه هم زيات کورونه ولري، ددې زيات موټر او کور قيمت بـه پـه نصاب کـې حسـابوي(بـدايع الصـنايع، کتـاب الزکـاة، مصـارف الزکاة، ۲ټوک، ۱۵۸مخ، دار احياء التراث العربی)

## دزكات واجب كيدو نيټه:

په ژوند كې تر ټولو لومړى ځل چې دچا په ملكيت كې دلومړي ډول نصاب سره سم مال راشي، نو هغه دې وګوري چې په دغه ورځ دقمري كال (سپوږميز) كال كومه نيټه ده؟ هغه نيټه دې يادابښت كړي، همدا نيټه ددغه تن لپاره دزكات ور كولو دنيټې په توګه تعين شو،ه ښكاره ده چې دزكات دوجوب او ادا كولو لپاره قمري كال ضروري دى، كه چاته دقمري كال نيټه نه وي ياده، نوهغه دې دښه غور اوفكر وروسته يوه قمري نيټه تعين كړي، راتلونكي كې دې دهمغې سره سم دحساب كتاب كولو وروسته دلمريز كال په تاريخ زكات ادا كول جايز دي.

## دزكات لپاره دحساب كولو طريقه:

په كومه سپوږميزه نيټه چې چاته دنصاب په اندازه مال راغى، دهم هغه نيټې نه به راتلونكى كال په همدې نيټه دخپل مال حساب كوي، كه دنصاب په مقدار مال وو، نو دټول مال دوه نيم سلنه (٪۲.۵) به زكات وركوي(العالمګيريه، كتاب الزكاة،۱ټوک، ۱۵۷مخ)

## مال باندې د كال تيريدو مطلب:

په كوم تاريخ چې زكات واجب كيږي، دهغه نه يو كال وروسته دې زكات ور كړاى شي، ددې يو كال تيريدو مطلب دادى چې په دې لومړۍ نيټه اوپه يو كال وروسته نيټه دنصاب مال په اندازه چې ددغه تن په ملكيت كې و، ددې دواړو نيټو ترمنځ په مال كې چې څومره كموالى اوزياتوالى راځي، په هغه سره كوم اثر نه پريوزي،بس شرط داده چې مال ټول نه وي ختم،يعنې دمال په هر جز باندې د كال تيريدل شرط ندي،بلكې دواجب كيدو وروسته راتلونكي كال ته په همدې نيټه دنصاب باقي پاته كيدل ضروري دى، كه نصاب باقي پاته و، نو دزكات اداكول لازم دي، او كه نه و، ندى واجب،(بدايع الصنايع، كتاب الزكاة، اموال الزكاة، ۲ټوک ۹۶مخ)

## دتجارت په مال كې دزكات احكام:

دتجارت مال وړاندې تعريف شوى دى، ځيني كسان دناسم پوهاوي په وجه دتجارت مال يواځي هغه مال بولي، دكوم چې انسان سوداګرې كوي، او دګټې په نيت يې پيرې اوپلوري، حال داچې شرعاً دتجارت مال ګرځيدو لپاره دياد قيد شتون ضروري ندى، بلكې هر هغه شى چې انسان تجارت په نيت باندې واخلي، هغه دتجارت په مال كې راځي، البته دپيرلو په وخت كې يې دپلورلو نيت نه وو روسته دپلورلو په نيت دتجارت مال نه ګرځي، بل پلو هغه څېز چې دتجارت په نوم اخستل شوى كه وروسته دتجارت نيت بدل شي دتجارت مال نه وزي، سره زر، سپين زر، اونغده پيسې ددې تعريف نه بيرون دي، يعنې دهغه لپاره دكوم خاص نيت ضرورت نشته، دا په هر حال كې دزكات مال دى(ردالمختار، كتاب الزكات، ټوک، ۲۶۷مخ)

## دتجارتي مالونو په اړه ځيني مسايل:

۱:... دكومو څيزونو پلورل چې مقصود نه وي، بلكې دهغو دذات په باقي پريښودو دهغو دلارې كرايه اونور ترلاسه كول يا په كوم بل شكل كې ګټه ترلاسه كول هدف وي، نو هغه څېزونه دتجارت په مال كې نه راځي، مثلاً: دپابريكو كې كنګل شوې پانګه، دچاپ او پابريكو ماشينونه، ددوكان فرنيچر، داستعمال موټر، تيک ټر، داوبو كوهې، دكرايې اوچلولو په نيت اخيستې موټر، ركشه،اونور دكرايې په نيت جوړ كړى كور، ، سالجه، دكاليو ګنډلو ماشين،داستعمال لوښي، دكاليو وينځلو ماشين، دكاليو وينځلو كارخانه اونور دغسي شيان دپلورلوپه نيت ندي اخيستل شوي، بلكې دهغو په باقي پريښودوله هغو نه ګټه پورته كول غرض ده، له دې وجې دا شيان دتجارت په مال كې نه راځي، او پكې زكات نشته، هو! كه دا څېزونه دتجارت په نيت اخيستي وي نودا دتجارت مال دى، هم داسې نن سبا ځيني ميخانيكي كار مندان ځيني ځيني توكي د دې لپاره ځان سره ساتي چې هغه دضرورت په وخت كې په ګاهک باندې وپلوري اوله هغوئنه قيمت وصول كړي، نو دا مال دتجارت په مال كې شماردى( ردالمختار، كتاب الزكاة، ۲ټوک، ۲۶۷مخ)

۲:... کـه کـوم څـاروی دپلـور لپـاره واخیسـتل شـو، نوهغـه دتجـارت پـه مـال کې راځي، پـه هغـه کې دتجـارت مـالونو پشـان تجارت واجب دی.(احسن الفتاوی ۴ټو ک، ۲۸۶مخ)

قصاب چې کوم څاروی ذبحه کړي، او دهغه غوښه پلوري، نودغه څاروی هم دتجارت په مال کې داخل دی، کوم څاروی چې دشیدو لپاره واخیستل شی، هغه دتجارت مال کې ندی داخل، البته دهغه دپیو نه چې کومه ګټه ترلاسه کېږي هغه به دنغدو پسو سره حسابولی شي او دزکات ور کولو په نصاب کې راځي.(احسن الفتاوی ۴ټو ک، ۲۸۷مخ)

## دتجارت مال دبیه کولو طریقه:

لومړی ډول نصاب او دویم ډول نصاب، دپیژندلو په طریقه کې دا یادونه وشوه چې په دویم ډول نصاب کې به دضرورت نه دزیـات سـامان بیـه کـولی شـي، نـو ددې بیـې نـه مـراد دسـامان دپلورلو بیه ده، نه دپیرلو، یعنې دحساب کولو په نیټه به دغه سامان په هغه نرخ باندې بیه کولی شي په کوم چې په عام بازار کې پلورل کېږي، هغه به په نصاب کې شمارل کېږي، هم داشان په سرو زرو، سپینوزرو کې هم دپلورلو بیې ته اعتبار وي، مثلاً: یو سړي یوڅیز په لس زره واخیسته، دپلورلو په وخت کې دهغه نرخ دولس زره یا ددینه کم اته زره و، نودزکات اداء کولو لپاره به دپلورلو بیه شـمارلی شـي(ردالمختار، کتـاب الزکاة، بـاب الرزکـاة الغنم، ۲ټو ک، ۲۸۶مخ)

## پور پیسو کې دزکات ور کولو حکم:

کومې پیسې چاته د پور په تو ګه ور کړې وي، هغه دوه ډوله دي، یو هغه پور دی، چې دهغو لاس تـه ور تلو امید وي، دویم هغه دی چې لاس ته دور الو امیـد نه وي، نود لومړی ډول پور بـه زکات ور کوي، اوددویم ډول نه، البته هر کله چې هغه پور په لاس ور شي، دهغه به هم زکات ور کوي، (هندیه، کتاب الزکاة، الباب الاول، ۱ټو ک، ۱۷۵ - ۱۷۶مخ)

په ځینو هېوادو کې حکومتونـه پـه بانکونو کې دخلکو لـه پیسونه زکات ګرځوي، شرعاً په دې سره زکات نه اداء کېږي، پـه دې کې شرعاً لس خربیانې شتون لري، چې دبینات فتاوی دویم ټوک د ۶۳۵ - تر ۶۴۰ مخ پورې په تفصیل سره راغلي دي داړ تیا په وخت کې دي هلته رجوع وشي.

## لنډیز:

په پای کې په لنډډول دهغو ټولو اثاثو یادونه کېږي چې په هغو کې زکات ور کول واجب کېږي ،اوپه کومو نه ، هغه اثاثې چې په هغو کې زکات ور کول وجب دی:

۱.... سره زر چې په هر شکل کې وي،

۲.... سپین زر چې په هر شکل وي ۳... نغده پیسې، ۴.... چا سره ایښودل شوی آمانت (که هغه سره زروي، سپین زرهم وي)۵.... بانک کې ایښودل شوي پیسې... ۶...دنورو هېواد دکرنسی پیسې... ۷.... دهر مقصد لپاره(لکه دحج، ځامنو دو ودونو، دکور جوړولو یا اخستلو لپاره)ایښودل شوې پیسې ۸.... دحج لپاره ور کړل شویو پیسونه هغه چې دمعلم او کرایونه دبسپنې په توګه بیر ته حاجي ته ور کول کېږي ۹...دتجارت په نیت پیرل شوي ونډې (حصص) ۱۰...دشراکت په معامله کې دخپلې پانګې او ګټې زکات ور کول ۱۱.... پلورلو لپاره اخستل شوی سامان، زمکه، حصص، اوخام مال. ۱۲...دتجارت لپاره اخستل شوې پراپرټي... ۱۳ دتجارت هر مال. دبازار دپلور نرخ سره سم ۱۵....دپلورل شویو شیانو څخه لاسته راتلونکې پیسې. ۱۶پـه ګودام کې ستاک شوي مال۸... خام مال...

پای

# یو څو اسلامي آداب

((ابراهیم مومند))

لومړی... کله چې تاسو د خپل یوه مسلمان ورور د لیدلو لپاره چېرته ځئ، یا خپل کور ته داخلېږئ؛ نو کور ته د داخلېدو او وتو په وخت کې ډېره مؤدبانه او مهذبه طریقه خپله کړئ؛ خپل نظر لاندې واچوئ، خپل غږ ټیټ کړئ، خپل بوټان، څپلۍ یا نور هغه څه چې ستاسو په پښو وي، په خپل ځای باندې یې وباسئ او د وېستلو سره سم یې په منظم ډول کېږدئ؛ هلته _ دلته یې مه غورځوئ؛ همدارنګه یې د پښو کولو او وېستلو آداب مه هېروئ، د اغوستلو په وخت کې لومړی ښی بوټ په پښه کړئ او د وېستلو په وخت کې لومړی چپ بوټ وباسئ. لکه څرنګه چې د اسلام د ستر پیغمبر حضرت محمدﷺ فرمان دی: ((... کله چې ستاسو څخه یو څوک بوټان (وغیره) په پښو کوي؛ نو لومړی یې له ښې پښې څخه شروع کړئ، همدارنګه کله چې یې وباسئ؛ نو بیا یې له چپې پښې څخه شروع کړئ... یعني ښي بوټ دې لومړی په پښو کړای شي او په آخر کې دې ووېستل شي. (مسلم شریف)))

د خپل مسلمان ورور کور ته د داخلېدو څخه مخکې خپلو بوټانو ته ښه وګورئ، که چېرته په لاره کې مو د بوټانو سره کوم ناپاکه شی او یا کوم بل څه نښتي وي؛ نو لومړی هغه تر لرې کړئ او بوټان مو په ځمکه باندې ښه وموږئ، تر څو هغه څه چې ورپورې نښتي وي؛ ترې لرې او پاک شي. دا د دې لپاره چې اسلام د پاکۍ، نظافت او تهذیب دین دی، لکه څرنګه چې رسول اللهﷺ فرمایي: ((الطهور شطر الایمان)) پاکي د ایمان یوه برخه ده او په بل حدیث شریف کې راځي، چې ((الطهور نصف الایمان)) یعنې پاکي او نظافت نیم ایمان دی.

دویم... د خپل مسلمان ورور یا د هغه کور به (میزبان) سره، چې تاسو یې مېلمه یاست د کېښناستلو پر ځای کش مکش مه کوئ، بلکې هر چېرې، چې هغه ستاسو کېښېنول غواړي، همغلته کېښېنئ. ځکه که تاسو د خپلې خوښې پر ځای کېښېنئ؛ امکان دې ولري، له هغه ځایه مو د کور پر ښځو باندې نظر ولړي. یا هلته ستاسو د کېښناستلو سره د کور خاوند تکلیف او ناآرامي احساس کړي. لنډه دا چې تاسو د خپل کور به په فرمایش او د هغه د غوښتنې مطابق کېښېنئ او د هغه اکرام او مېلمه پالنه قبوله کړئ.

د جلیل القدر صحابي حضرت عدي بن حاتم طائيؓ د اسلام د راوړلو په واقعه کې راځي، چې: هغه د رسول اللهﷺ په خدمت کې حاضر شو، نو رسول اللهﷺ د هغه د عزت او اکرام کولو لپاره هغه ته دوشکه (توشکه) وړاندې کړه، یعنې کېښوده او خپله هغهﷺ پر ځمکه باندې کېښناست.

واقعه داسې ده: حضرت عديؓ فرمایي، چې رسول اللهﷺ هغه له ځانه سره کور ته بوته، کله چې هغهﷺ کور ته داخل شو، نو له ځانه سره یې د څرمنې یوه دوشکه، چې د خورما له پروړې (پخلې) څخه ډکه وه، راوړه او پر ځمکه یې هواره کړه او ویې فرمایل: تاسو پر دې باندې کېښېنئ. ما عرض وکړ، چې تاسو پر دې باندې کېښېنئ. هغهﷺ وفرمایل: نه تاسو پر دې باندې کېښېنئ. بیا زه پر هغه باندې

کښېناستم او رسول اللهﷺ پر ځمکه باندې کښېناسته. ابن کثیر دغه واقعه په ((البدایة والنهایة)): ۴٦/۵، کې د سیرت ابن هشام څخه رانقل کړې ده. وایي خارجه بن زید رحمة الله علیه د محمد ابن سیرین رحمة الله علیه د لیدلو لپاره د هغه په خدمت کې حاضر شو؛ نو ګوري چې ابن سیرین رحمة الله علیه دوشکه او تکیه د ده لپاره پرېښوده او خپله دی رحمة الله علیه پر ځمکه باندې کښېناست. په دې وخت کې حضرت خارجه رحمة الله علیه غوښتل، چې له هغه سره پر ځمکه باندې کښېني؛ نو هغه رحمة الله علیه ته یې وویل: تاچې د ځان لپاره کوم شی خوښ کړی دی، یعنې پر ځمکه باندې کښېناستل دې خوښ کړي دي؛ نو زه هم د ځان لپاره دغه خوښوم. په دې وخت کې ابن سیرین رحمة الله علیه وفرمایل: زه په خپل کور کې هغه څه ستا لپاره نه خوښوم، چې د ځان لپاره یې خوښوم؛ نو تاسو هلته کښېنئ چېرې، چې تاسو ته د کښېناستلو ویل کېږي.

همدارنګه د کوربه په ځانګړي (خاص) ځای مه کښېنئ، هو په هغه صورت کې، چې هغه په خپله ستاسو هلته کښېناستل وغواړي. ځکه چې رسول اللهﷺ فرمایلي دي: (... یو څوک دې د بل چا امامت نه کوي، نه دې د هغه د منصب پر ځای کې او نه دې هم د هغه په کور کې د هغه پر خاص ځای کښېني، البته په هغه صورت کې، چې هغه ده ته اجازه وکړي. (دا حدیث امام مسلم روایت کړی دی.)

درېیم... کله چې تاسو د خپل یوه ورور او یا ملګري کور ته لاړ شئ او هغه تاسو په یو ځای کې کښېنوي؛ نو تاسو خپل نظر داسې مه ګرځوئ _ راګرځوئ، لکه یو څوک، چې د کوم شي په لټه کې وي. بلکې تاسو خپل نظر لاندې واچوئ. کله چې تاسو ناست یئ او یا اوده کېدل وغواړئ، نو یوازې پر هماغه شي باندې نظر واچوئ، د کوم شي چې تاسو ته ضرورت وي.

که چېرې هلته کومه بنده الماری، صندوق او یا کوم بکس موجود وي، هغه مه خلاصوئ. د دې تر څنګ که هلته کومه غوټه شوې کڅوړه (خلته) موجوده وي، هغه مه خلاصوئ. یا کوم ګنډل شوی شی وي، هغه مه خلاصوئ. ځکه چې دا د اسلامي آدابو خلاف کار دی او د دې امانت او اعتماد هم خلاف ده، د کوم پر اساس، چې ستاسو ورور او یا ستاسو ملګري پر تاسو باندې اعتبار او اعتماد کړی دی او تاسو ته یې خپل کور ته د راتللو او پاتې کېدلو لپاره دعوت در کړی دی.

لنډه دا چې د چا سره د لیدلو او اوسېدلو، یعنې د زیارت آداب زده کړئ؛ په ښه معاشرت او ټولنیزه پراخی، کې داخل شئ او د خپل کوربه په وړاندې په ښه، نېک او خوښ شوي مقام باندې ځانونه فائز کړئ.

څلورم... تاسو ته په کار ده، چې د ملاقات لپاره د مناسب وخت انتخاب وکړئ او کله چې ملاقات کوئ د کوربه سره دومره پاتې شئ، څومره چې ستاسو او د هغه د تعلقاتو لپاره مناسبه وي. لنډه دا چې ملاقات مه اوږدوئ او مه پر کوربه باندې بوج او تکلیف جوړېږئ او مه پر داسې وخت باندې له چا کره ځئ، چې د ملاقات لپاره مناسب نه وي، د بېلګې په توګه د ډوډۍ په وخت کې، د خوب (اوده) کېدلو په وخت کې، یا د آرام او استراحت په وخت کې د ملاقات څخه ځانونه وژغورئ. امام نووي رحمة الله علیه په خپل کتاب ((الاذکار)) کې د سلام د باب په آخر کې د سلام مسایل ذکر کړې دي، چې فرمایي: د یوه مسلمان لپاره، چې د کوم مستحب کار ټینګار (تأکید) شوی دی، هغه دا دی، چې هغه دې د نېکو خلکو، خپلو ورونو، خپلو ګاونډیانو (همسایه ګانو)، خپلو دوستانو او د خپلو خپلوانو سره تګ راتګ کوي. د دوی اکرام دې کوي. احسان او ښېګڼه دې ور سره کوي. صله رحمي دې ورباندې کوي. البته دغه ملاقاتونه د معیار، حالاتو، مراتبو او د فراغت له مخې ادلون _ بدلون مومي. لنډه دا چې مناسبه دا ده، چې ملاقات په داسې موقع او وخت باندې وشي، چې هغه مقابل لوري ته ناخوښ نه وي او په داسې وخت کې وي، چې هغه یې خوښوي. په دې باره کې ډېر احادیث او مشهور آثار موجود دي.

پنځم... کله چې تاسو د خپل کوربه سره خبرې _ اترې کوئ، نو د هغه د مقام او مرتبې په نظر کې نیولو سره مختصرې او لنډې خبرې وکړئ. همدارنګه که چېرې تاسو په یوه مجلس کې د عمر په لحاظ تر ټولو کم عمره او کوچني یاست؛ نو بیا تاسو خبرې مه کوئ، البته د ضرورت په وخت کې.

الله تبارک وتعالی په قرآن عظیم الشان کې رسول اللهﷺ ته حکم کوي، چې: که د مجلس د ګډونوالو له جملې څخه څوک ستا څخه پوښتنه وکړي؛ نو تاسو د هغه ځواب ور کړئ. همدارنګه که تاسو پوهېږئ، چې په مجلس کې حاضر خلک ستاسو په خبرو _ اترو باندې خوشحالېږي او ستاسو د خبرو قدر کوي؛ نو د خبرو پیل (شروع) کولی شئ، البته خبره مه اوږدوئ او په مجلس کې د ناستې آداب او د خبرو _ اترو طریقه مه هېروئ. ومن الله توفیق

# دشهیدانو په یاد

(استاد فضل ولي ناګار)

لکـه ګـلاب ښـکاري بغـداد انځـور رنګـین ورسـره
مصـر پــه وینــو کــې لمبیــږي فلســطین ورســره

د زمـانې کـوم یـو فرعـون تـه بیـا نیـل جـوړیږي
څپــې څپــې ځــې زمــوږ وینــې اباســین ورســره

د پرونــي غــازي وارث دا اکبــر تــوره څــه کــړه
څنګــه بــه غــاړه ګرځــوي زنــار وړښــمین ورســره

چــوپ دې شــپیلۍ د تکبیــر مــه شــه د ختــیځ فاتحــه
شــمله دې هسـکه پـه ننـګ اوسـه هـوډ یقـین ورسـره

خلـک بـه وایـي چې اسـلام او پښـتو څـه مانـا؟
څوک چې غزا له ځي ناګاره! اس که زین ورسره

